## د کتاب پېژندنه


1. د کتاب نوم: پښتو نحوه (ګرامر)
2. ليکوال: پوهندوی ډاکتر زرغونه رښتين زيور
3. د چاپ ځای: د ساپي د پښتو څېړنو او پراختيا مرکز

پېښور – پښتونخوا

4. د چاپ نېټه: 1382 لمريز – 2003 ع کال




هدا

د پښتو ادب د اسمان پنځم ستورې، لوی استاد علامه پوهاند رښتين پاك روح ته، د هغو خدمتونو د لمانځنې او درناوي په ویاړ، چې څه د پاسه نیمه پیړۍ یې د زړه په وینه او د تندي په خولو پښتو ژبه او ادب د نړیوالې سیالۍ جوګه کړې او پښتو ژبې او ادب ته یې نوی خوند او رنګ ور بخښلی دی!

# سرلیکونه


1. یو څو خبرې 1
2. د پښتو ژبې ګرامر ته یوه لنډه کتنه 3

لومړی څپرکی

3. Syntax سنټکس (نحوه) 18
4. نحوي واحدونه 23
5. جمله 27

دویم څپرکی

6. ترکیب (غونډ – عبارت) 37
7. په پښتو ژبه کې د ترکیب ډولونه 44
8. اصطلاحات (فرازیالوژیکي) واحدونه 70

درېیم څپرکی

9. د پښتو ژبې د جملې جوړښت 78
10. لومړی مبتدا – فاعل 82
11. دویم خبر – فعل 88
12. مفعول 92
13. نحوي قیدونه 96

څلورم څپرکی

14. په پښتو ژبه کې د جملو خصوصیات (ځانګړتیاوې) 100
15. د پښتو ژبې عروضي خصوصیات 100
16. د پښتو ژبې نحوي خصوصیات 110

## پنځم څپرکی

17. د جولې (شکل) له مخې د جملې ډولونه 135

18. یو ستوې یا ساده جملې 135

19. غبرګې یا مرکبې جملې 140

## شپږم څپرکی

20. په پښتو جملو کې د یوې برخې یا اجزاو (Ellpsis) د حذف مسئله 170

21. د فاعل – مفعول – فعل او قید حذف 170

22. د ګرامري اجزاو د ماهیت بدلون 174

23. صفت د اسم په توګه 177

24. اسم د صفت په توګه 178

25. صفت د قید په توګه 178

26. نتیجه 179

27. اخیستنځي (ماخذونه) 182

# يو څو خبرې

د ژبو او ادبياتو د پوهنځي د پښتو څانګې په درسي نصاب کې د پښتو ژبې ګرامري مسايل لکه (صرف، نحوه) هم ځای لري.

د پښتو ژبې په صرفي برخه کې مواد او ليکنې شته. چاپي اثار هم لرو او د نحوې په برخه کې خواره واره مواد د بېلا بېلا کورنيو او باندنيو پياوړو استادانو او ژبپوهانو له خوا رامنځ ته شوي دي، خو د يو بشپړ درسي پلان له پاره کافي نه ګڼل کيږي. د درسي پلان له مخې ښايي چې درسي مواد کال په کال يالږ تر لږه دريو څلورو کالو په موده کې پرې نوی نظرو شي او د ورځنيو علمي تجربو، نويو علمي څيړنو په رڼا کې دغه مواد بشپړ اوکره شي.

دغه کار چې زه يې دلته وړاندې کوم سره له دې چې نوې موضوع نه ده خو بيا هم دغه اثر کيدای شي د پښتو ژبې د نحوي مسايلو او پرابلمونو په باب په څه نا څه ګټه شي.

ددې اثر په ليکنه کې زياته هڅه شوې ده چې مسايل په تطبيقي توګه بيان کړای شي او همدارنګه د موضوع دروښانولو له پاره زيات مثالونه په عملي او تطبيقي برخه کې د پخو ليکوالو، استادانو د اثارو او همدارنګه د پښتو ژبې د خوږو محاورو نويو او زړو اصطلاحګانو څخه کار اخيستل شوی دی.

بايد زياته کړم چې ما دغه اثر د لوی استاد علامه پوهاندرشتين په لارښوونې چې زه يې د شاګردۍ وياړ هم لرم ليکی دی.

څنګه چې په دې برخه کې تر اوسه کوم درسي چاپ شوی بشپړ کتاب يا لکچر نوټ نشته نو د پوهنځي د پښتو څانګې داړتيا او ضرورت له مخې ما دغه ګران کارته اوږه ورته کړې تر څو لږ تر لږه زما دغه کار او هلې ځلې له يوې خوا دا چې د پښتو ژبې په دغه ګرامري برخه کې يو څه کار شوی وي او له بلې خوا د مينه والو او د څانګوالو له پاره د استفادی وړوګرځي.

دغه اثر په 1366 لمريز کال د کابل پوهنتون د ژبو او ادبياتو د پوهنځي له خوا د کستتنر په شکل چاپ شوی و، چې بيا وروسته د چاپېدوله پاره يې منظوري هم شوې وه. له بده مرغه د هيواد دبدو سياسي حالاتو له کبله چاپ نه شو.

د 1371 لمريز کال د کابل د جګړو په نتيجه کې د ادبياتو د پوهنځي او د هيواد د نورو زياتو کتابونو سره يو ځای دغه اثر هم له منځه ولاړ.

سږ کال د ننګرهار پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې د ضرورت له مخې پریکړه وکړه، چې دغه درسي اثر (پښتو نحوه) دې چاپ شي، نو د ساپې څېړنو مرکز د خپلې ملي پالیسۍ له مخې چې درسي کتابونه په لومړي قدم کې چاپوي، نو ددې کتاب په چاپولو کې هم مرسته کړې ده چې دغه مرکز له یوې خوا خپل ملي رسالت تر سره کړی او له بلې خوا د پښتو څانګې د استادانو او محصلینو لپاره یې درسي اسانتیا برابره کړې ده. په دې توګه مننه او کور ودانۍ ورته وایو د لاړیاتو بریالیتوبونو په هیله.

پوهندوی ډاکتر زرغونه رشتین زیور
د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي استاده

# د پښتو ژبې ګرامرته یوه لنډه کتنه

ګرامر د ژبې د جوړښت علمي شرحې ته ویل کیږي او د تشریحي ژبپوهنې یوهستره څانګه ده.

ژبپوهنه د علومو په لړ کې یوه نوې پوهنه ده او له یوې پېړۍ راهیسې د ژورو کتنو او څېړنو په مرسته مخ په وړاندې ځي، خود ژبې په باب له ډېرو لرغونو زمانو څخه ځینې کتنې او څېړنې روانې دي، د لرغوني، کلاسیك، منځنیو پېړیو، (17-18) پېړیو ژبپوهنه د نوې ژبپوهنې زړی او اساس جوړوي، د ژبپوهنې په پراختیا او پرمختیا کې پخوانۍ هندي او یوناني فلالوژي ډېره اغیزمنه برخه لري[1]

مونږ دلته د ژبپوهنې تاریخي سیر او پرمختګ په بشپړه توګه نه څېړو بلکې غواړو چې یوازې د ژبې ګرامر ته یوه لنډه کتنه وکړو او بیا په خپل مطلب لاس پورې کړو. نوې ژبپوهنه که څه هم د علومو په لړۍ کې د شلمې پېړۍ ابتکار دی، ولې ګرامر د ژبپوهنې د یوې څانګې په توګه لرغونی تاریخ لري. په عمومي توګه په نړۍ کې ګرامر بېلا بېلې پوړۍ او پړاوونه تر شاکړي دي چې ددغو بېلا بېلو د ورو او پړاوونو په بهیر کې د ټاکلي جهان بینۍ، نظریو او لارو چارو له مخې د ګرامر بېلا بېل ډولونه رامنځ ته شوي دي چې تر ټولو مهم یې کلاسیك عنعنوي، مقایسوي، تاریخي، تشریحي ګرامرونه دي. په لویدیځه نړۍ کې د ګرامر لیکلو منشا لرغوني یونان ته رسیږي چې کلاسیك ګرامر لومړی په یونان او بیا په روم کې منځته راغی.

افلاطون (427-347ق م) د یونان نامتو فیلسوف د لویدیځې نړۍ لومړنی عالم دی چې د ژبې د حقیقت او څرنګوالي په باب یې څېړنه کړې او له همدې امله د ژبپوهنې بنسټ اېښودونکی او د باقاعده ګرامر (Systematicgrammar) جوړوونکی ګڼل شوی دی. د افلاطون څخه وروسته د ارستو نظریه د ژبې په باره کې د څېړنې او ارزښت وړ ده. د ژبې په باب ارستو د افلاطون پر خلاف داسې عقیده لرله چې ژبه فطري نه ده بلکې یوه ټولنیزه او اتفاقي پېښه ده[2] او کلمات د خارجي دنیا د مظاهرو دپاره سمبولونه ګڼلي دي. په دې توګه ارستو لومړنی مفکرو چې د الفاظو ډلبندي اوویش مفکوره یې رامنځته کړې او کلام یې په دریو برخو (اسم، فعل، حرف) ویشلی دی.

تردې وروسته رومیانو یعنې درومي تمدن په دورې کې د لاتیني ژبې د ګرامري قواعدو په شرح کولو کې د یو نانیانو د ګرامر لیکنې اصول او لارې چارې په پام کې ونیولې. دوي په حقیقت کې د

---

[1]- و. ي. کود وخوف، عمومي ژبپوهنه، (لوؤ ووڼ ی، مسکو 1974 (7) مخ.

[2] جان، تی، واترمن، سیری در زبان شناسی، ترجمه فریدون بدره ی 1347ص 7 خیاپور، دستور زبان فارسي، چاپ ششم 1347 (ص7).

يوناني ژبې د ګرامري قاعدو په چوکاټ کې د لاتيني ژبې بېلګې ځای کړلې. ورپسې دغه ډول ګرامر ليکنه او طريقه عربو هم د خپلې ژبې د پاره غوره کړه. عربي پوهانو د خپلې ژبې د جوړښت برخې په دې دريو برخو (اسم، فعل، حرف) هم ويشلي دي. د ارستو دغه ويش تر اوسه پورې د عربي ګرامر پوهانو په اثارو کې استعماليږي چې دغه طريقې فارسي او پښتو ژبو ته هم لاره موندله او د افغاني ګرامر پوهانو له خوا دود شوي دي.

عنعنوي ګرامر چې په لويديځه نړۍ کې رامنځ ته شو هغه ګرامر دی چې د انيوس تراکس (Dionysius thrax) (2 پېړۍ ق.م) په اروپا کې دارستو د ميتود تر څنګ رامنځ ته کړ او ترده وروسته (4 م پېړۍ) دوناتوس (Donatus) د لاتيني ژبې ګرامر رامنځ ته کړ.[1] تراکس د نن نه نژدې 2000 کاله پخوا د يوناني ژبې د زوړې مطالعې او د پخوانيو عالمانو د کشفياتو څخه په ګټې سره کلمه په اته ډوله (اسم، فعل، فعلي صفت، ارتيکل articulus) ضمير، حرف اضافت (Prepostion) (پريدلوک) قيد، ربط ويشلې ده[2] چې بيا دوناتوس د څلورمې پېړۍ را په ديخوا لاتيني ګرامر د تراکس د ګرامر پر اساس وليکه چې ددغو ګرامر ليکونکو لاره بيا وروسته د يورپ ګرامر يستانوونيوله. دغه ګرامريستان په دې عقيده وو، چې ډېرې ژبې په تيره بيا لاتيني ژبه د معتبرو منطقي او عمومي قواعد و درلودونکې ده. همدغه دګريکو رومن د عنعني (دود) پر اساس ليکل شوي ګرامرونه دي چې وروسته يې د نورو ژبو لکه عربی، عبرانی، لاتينی 000 او نورو ژبو دګرامرونو اساس جوړ کړی دی. په کال (1784ع) کې د مقايسي او تاريخي ژبپوهنې پيل کيږي. د مقايسي او تاريخي ژبپوهنې په پرمختيا او انکشاف کې د هندي فلالوژۍ او سانسکريت سره د اروپايي پوهانو اشنايي او بلدتيا ډېره ارزښتناکه خبره ګڼله کيږي. په دې سلسله کې د سرويلم جونز نوم د يادولو وړدی. ده په کلکته کې د بنګال اسيايي ټولنه رامنځ ته کړه. په خپله جونز په هندي ژبو او سانسکريت پوهيده[3].

د (17-18) پېړيو په شاوخواکې اروپايانو د پاڼي نې ګرامروموند او د هغه په واسطه د سانسکريت د ژبې سره اشنا شول. د پاڼي نې ګرامر د سانسکريټ د ژبې په باب ډېر مفصل او ګټور معلومات خلکو ته په لاس ورکړل. اورپايي پوهانو د پاني نې د ګرامر موندنې تر مهاله پورې ددغه ګرامر په شان بل کوم کتاب نه وليدلی. (بلوم فيلډ) د پاني نې د ګرامر په باب داسې ويلي دي، چې د انساني ذکاوت له سترو يادګارونو څخه دی. دا کتاب د سانسکريت د ژبې صرفي، اشتقاقي، ترکيبي او نحوي شکلونه په ډېرې پاملرنې سره شرح کړي دي او تردې د مخه هېڅ يوه ژبه هم دومره بشپړه او پوره نه وه څېړ له شوې. د پاني نې د ګرامر سره د پوهانو بلدتيا دوې مهمې

---

[1] و، ي، کود و خوف، عمومی ژبپوهنه (لوۀ ووړ ی) مسکو 1974، 11 مخ
[2] و، ي، کود و خوف، عمومی ژبپوهنه (لوۀ ووړ ی) مسکو 1974،11 مخ
[3] و، ي، کود و خوف، عمومی ژبپوهنه (لوۀ ووړ ي) مسکو 1974، 24مخ

نتیجې ورکړي دي. اول دا چې د یورپ پوهان د لومړي ځل له پاره د یوې ژبې د پوره او دقیق تشریح سره مخامخ شول. او ولیدل شول چې ددغه ګرامر د قاعدو او څېړنو اصول د فرضیو او ذهني تصوراتو پر ځای تطبیقي او عملي څېړونو پربنسټ ولاړ دي، بله دا چې پوهان د نړۍ د ډیرو ژبو سره اشنا شوي وو نو د سانسکریټ سره هم اشنا شول، په دې توګه دوي وکولای شول، چې ددغو ژبو کلمې او الفاظ یو له بله سره پرتله کړي چې البته د مقایسي ګرامر لیکنه د پاني نی د ګرامر د موندنې څخه وروسته پیل کېږي. د پاني نی د ګرامر سره په ګرامر لیکنه کې یو نوی باب پرانېستل شو. وروسته تردې د ژبې څېړونکو ته جوته شوه چې د سانسکریټ او د ځینو لرغونو ژبو لکه یوناني، لاتیني او نورو اروپایي لرغونو ژبو ترمنځ هم د ګرامري جوړښت او هم د لغتونو له مخې ښکاره ورته والی موجود دی نو ځکه د سانسکریت یوناني، لاتیني ژبو د ګرامري جوړښتونو او لغاتو د مقایسوي څېړنو د پرمختګ په ترڅ کې د ژبپوهنې مقایسوي برخه تاسیس شوه او پرمختیایې وموندله.

په دې توګه د لویدیځې نړۍ ژبپوهان د اتلسمې پېړۍ د پیل څخه تر نولسمې پیړۍ پورې یعنې پوره سل کاله یوله بله سره تړلي دي. ایندو اروپایي ژبې په مقایسوي توګه مطالعه او ددغو ژبو ترمنځ یې د تقابل قوانین د غږونو بدلون او نورې ګډې ځانګړتیاوې او صوتي، لفظي، نحوي مسائل په ژوره توګه څېړلي مطالعه کړي دي.

په همدې توګه د ژبې د مقایسې، مطالعې سره جوخت تاریخي مطالعه او څېړنه هم پیل شوې ده. په دې وخت کې یوه ډله پوهان د مرقومو اسنادو له مخې د خاصو ژبو د تاریخ په مطالعه او څېړنه بوخت شوي دي. ددغو مطالبو د مطالعې مهمه نتیجه د ژبې ددرې ګونو دورو (کلاسیک، منځنۍ، معاصره (اوسنۍ) ټاکنه وه او په دې توګه د یوې دورې نه بلې دورې ته د انتقال مرحلې شرح شوي. چې د هرې دروې صرفي (مور فولوجیکی) او نحوي (سنټکسي) خصوصیات بیان او ښودل شوي دي .څنګه چې د مخه مو اشاره وکړه معاصره او علمي ژبپوهنه په اروپا کې د شلمې پېړۍ له لومړۍ نیمایي څخه شروع کیږي یعنی د ژبې علمي مطالعه د (20) پېړۍ په لومړي سرکې یوې نوې مرحلې ته ورداخلیږي. دا وخت ځینې پوهان دې نتیجې ته ورسیدل چې ژبه د دوو بېلا بېلو خوا وو څخه مطالعه کیدای شي: یوه په تاریخي او بله په تشریحي توګه.

څنګه چې ژبه د زمانې په یوه خاصه موده کې او یا د زمانې په اوږدو کې تغییر اوبدلون کوي او د ټاکلو قوانینو او قاعدو له مخې عمل کوي، نو که د ژبې د بدلون قوانین د زمانې د یوې مرحلې څخه بلې مرحلې ته په ترتیب سره مطالعه شي نو د تاریخي ژبپوهنې مبحث جوړ وي او که چېرې د ژبې قواعد د زمانې په یوه ټاکلې مرحله کې وڅېړل شي نو بیا د تشریحي ژبپوهنې

موضوع جوړوي چې په دې توګه ګرامر د تشريحي او تطبيقي ژبپوهنې يوه برخه ده. البته پوهان په دې نظريه هم دي چې د ژبې تشريحي مطالعه، د تاريخي مطالعې څخه ړومبى او مخکې ده. يعنى تر هغه چې د ژبې موجوده حالت شرح نه شي نو تر هغې پورې بايد د هغې تېر تاريخ هم مطالعه او تحقيق نه شي[1].

د شلمې پېړۍ د منحنى دورې د ژبپوهنې ځانګړتيا او مهم خصوصيت دا دی چې ژبه د يوه ټاکلي جوړښت درلودونکي بولي او په دې توګه هڅه کيږي، چې ژبني علوم د نورو طبيعي علومو سره نژدې کړي. د څېړنې دغه لاره د ژبې د جوړښت د اصالت لاره او مکتب منځ ته راوړي.

د ژبې د جوړښت د اصالت (Structuratism) معنا داده چې ژبه د رابطې سيستم يا يو له بل سره تړلوسيستمونو مجموعه ده. د ژبې جوړونکي عناصر لکه غږونه، الفاظ او نور په خپل منځ کې پرته د متساوي او متناقصو اړيکو دلرلو څخه په ځانګړي توګه اعتبار او اهميت نه لري نو په دې توګه د ګرامر ليکنې تاريخ راوروسته زمانو ته رسيږي، په 1957 کال کې د چامسکی په نامه يوه عالم د نحوي جوړښت Syntactics Structure تر عنوان لاندې يوه رساله ليکلې ده. دغه ليکنه د ګرامر ليکنې په چوکات کې خورا بدلون ښيي. هغه غوښتل چې د ژبې د جوړښت په باره کې د يوې داسې عمومي او کلي نظريې بنسټ کښيږدي چې د ژبې په باره کې په عام ډول او د هرې ژبې په باره کې په خاص ډول د تطبيق وړوي. ده خپله دغه نظريه د ګزارشي نظريې Transformational theory او هغه ګرامر چې ددغه نظريې په اساس ليکل شوی و. د ګزارشي ګرامر په نامه ياد کړ. ګزارشي يا تطبيقي ګرامر چې يوه نوې ګرامري لاره ده، د انګريزي، روسی او جاپانی ژبو په ګرامر ليکنه کې تطبيق شوې ده، دا ګرامر ليکونکي په دې خبره ټينګ دي چې د ګرامر ليکنې دغه لاره په ټولو ژبو کې تطبيق کيدلای شي. مګر ددې په څنګ کې ځينې ژبپوهان هم شته چې تر اوسه لاددغې نظريې په ربښتينوالي شکمن دي. د تطبيقي يا ګزارشي ګرامر او تشريحي ګرامر تر منځ توپير دادی چې په تشريحي ګرامر کې د ژبې حالت او شکل ته ډېره پاملرنه کيږي او د ژبې تطبيقي يا عملي جنبه له نظره غورځول کيږي، يعنی په تشريحي ګرامر کې د ژبې د حالت او فعالې عملي ترمنځ توپير نه څرګنديږي. په دغه ډول ګرامر کې د ژبې ثابت او ټاکلی شکل په يوه معينه زمانه کې مطالعه کيږي او د ژبې عملي او فعال صورت ته پاملرنه نه

---

[1] **جان، تی، واترمن، سيري د رزبانشناسی، ترجمه بدره ی** 1347 **ص** 101

کیږي، ګزارشي ګرامر د ژبې د عملي جنبې د شرحې پر اساس ټینګ او استواره دی، چې طبعاً ددغه هدف د لاس ته راوستلو له پاره د ژبې د حالت څخه هم خبري کیږي.

اوس په دې برخه کې غواړم د پښتو ژبې ژبنیو څیړونو ته یو لنډ نظرواچوم. د پښتو ژبې په اوږد او لرغوني تاریخ کې دوه وروستې پیړۍ د ژبنیو څېړنو او ژبنیو مواد و په رامنځ ته کیدلو کې ارزښتناکه دوره ګڼله کیږي. تر دې د مخه د پښتو ژبنیو څېړنو ته د چاپام نه دی ورګرځیدلی. مونږ د (18) پیړۍ څخه وړاندې د پښتو ژبې د اصولو په باب څه څرك نه وینو او په دې برخه کې څه پته نه لګیږي او یا خولادرکه دي.

پښتو یا د افغانانو ژبې ډېرو وروستو زمانو کې د نړۍ د ژبپوهانو پام ځان تـه را اړولی دی. پـه اروپا کې د ژبپوهنې د پرمختګ او د هندي اریایي ژبو سره ددوی بلدتیا ددې سبب شوه چې د پښتو ژبې په باب څېړنې او تحقیقات هم رامنځ ته شي.

د پښتو ژبې د ګرامرونو په باب که څه هم په اول سرکې د پښتنو پوهانو له خوا اثار لیکل شوي دي خو وروسته په کې اروپایي پوهانو هم پوره برخه اخیستې ده او د شرقي ژبو د پلټنو پـه سلسلې کې یې د پښتو ژبې په باب ښې پلټنې کړي دي. ختیځ پوهانو د علمي پلټنو په لړ کې پښتو ژبې تـه هم پوره پاملرنه کړې ده او د بېلو بېلو هیوادو ختیځ پیژندونکو د پښتـو ژبـې قاموسونه، ګرامرونه او نور ژبني اثار لیکلي او علمي څېړنې یې ترسره کړي دي.

دغـه څېـړنې د نـړۍ پـه بیلـو بیلـو هیوادونـو لکـه المـان، انګلستان، شـوروي اتحـاد، فرانسـه، امریکا، چکوسلواکیا، ایټالیه، سویس، ناروی او نورو کې شوي دي. د یورپ پوهانو د پښتو ژبې په باب او د هغې د منشا او پیدایښت په باره کې نظریې او څېړنې وړاندې کړي دي او همدارنګه د پښتو ژبې خپلوي او اړیکي د نورو ایندو اروپایي ژبو سره د مقایسوي تاریخي، مقابلوي ژبپوهنې له مخې ثابته کړې ده.

پـه یـورپ کـې د جمیـز د ارمسـټټر (1849-1894) او وریـسي د ګـایګر (1856-1942) او مارګېنستر (1892-1980) ایمل بنونیست (1902-1976) د پښتو په باب ددوي څېـړنې د قـدر او یـا دولـوور دي. دار مستتر پـه 1888 کـال پـه اروپا کـې د (افغانـانو ژبـه) تر سرلیك لانـدې یـو اثـر لیکلی دی چې دواك (اواز شناسی) صرف، اشتقاق او ترکیب برخې لـري. او همدارنګه پـه همدغـه اثر کې د پښتو د منشا په باب نظریې ځای شوي دي.

ترده وروسته ويليم ګايګر (1856-1942) داو ستا د ژبې سره د پښتو مقايسه ترسره کړې چې په دې کې 389 پښتو کلمې د اوستا او نورو لرغونو ژبو سره مقايسه کړي چې بيا مارګنيستېرن دغه کار بشپړ کړی دی ځکه مارګنستېرن خپل اثر ګايګر ته اهدا کړی هم دی.
د ګايګر د کتاب دويمه برخه چې (27) مبحثه لري د پښتو ژبې واکشناسي (تحقيق، تلفظ) په نامه يادېږي.
که د پښتو ژبې د تحول او انکشاف د ډېرو لوړو او ژورو څخه راتېر شو او د ژبې د ژبني موادو او مطالعاتو تاريخچې ته نظر واچوو نو داسې څرګندېږي چې د (19) پېړۍ پيل د پښتو قاعدو په باب لومړني اثرونه په لويديځه (اروپا) اولره، بره پښتونخوا کې ددغو لاندنيو علتونو له مخې منځ ته راغلي دي.
پښتنو ليکوالو د نورو زياتو کتابونو ترڅنګه ژبني کتابونه اور سالې ليکلي او د پښتنو پاملرنه يې د پښتو ژبې د ترقۍ او ژوند د پاره راګرځولې چې دلته د ليکوالو مرام او مقصد د ژبې تعليم او ښوونه ده.
کوم پښتو ګرامرونه چې تر اوسه ليکل شوي، ځيني مفصل او ځيني يې لنډ دي چې پر ټاکلو موضوعګانو بحث کوي او بشپړ او نا بشپړ ډولونه هم په کې ليدلای شو، په هر حال دغه ګرامرونه د لاندنيو مرامونو له پاره جوړ شوي دي.
**الف**: لومړی ډله د پښتنو لپاره، چې د خپلې ملي ژبې ګرامر تري زده او ګرامري اصطلاحګانو سره بلدتيا پيدا کړي.
**ب**: دويمه ډله هغه دي چې زده کوونکي د هغو په مرسته پښتو زده کړي چې په دې کې باندنيو او کورنيو پوهانو برخه اخستې ده.
دلته بايد زياته شي چې د خارجي ختيځ پوهانو له خوا ځيني ګرامرونه او ياګرامر ډوله اثرونه اساسا د پښتو زده کړې له پاره په سياسي او اداري لحاظ ليکل شوي دي. په دې لړکې د هانري والترېبيليو او راورټي (1825-1906) ګرامرونه د بيلګې په توګه نومولی شو. په خپله بيليو د پښتو زده کړه په افغاني سيمو کې د برتانوي مامورينو دادارې او سياسي اغيزناکۍ د پاره حتمي ګڼله[1].

---

[1] پ تو چاپی اثار و د مقالو مجموعه ( ول ه) کابل 1357 کال 87 مخ.

د لاسته راغلو مدارکو او اسنادو له مخې د پښتو ژبې په ګرامر ليکنه کې د دوومېتودونو څخه کار اخيستل شوی دی.

1- لومړی هغه بڼه ده چې د عربي ګرامر په دود ترتيب شوي چې دغه ډول په اسلامي هيواد کې ډېر رواج موندلی دی.

او بله ډله هغه چې د غربي نمونې رنګ په کې غالب دی. دې ګرامر ته مونږ غربی مېتود يا تحول موندلې نمونه وايو.

ددغه پورتنيو ميتودونو په اساس د پښتو ژبې ليکل شوي ګرامرونه چې د ختيځ پوهانو او يا پښتنو پوهانو له خوارامنځ ته شوي د يولنډ فهرست په توګه راوړل کيږي.

**الف**: هغه اثار چې د کورنيو پوهانو له خوا رامنځ ته شوي دي په لاندې ډول دي:

1- رياض المحبت: دا د نواب محبت خان اثر دی چې په (1806ع) کال چاپ شوی دی. دغه اثر درې برخې لري: الف: د پښتو ژبې لغات ب: د فعلونوګردانو نه ج: د تاريخي احوالو بيان. د اثر يوه قلمي نسخه په 1855 کال د کلکتې څخه ليننګراد ته وړل شوې ده او بله نسخه يې د لندن په موزيم کې شته دی.

**2**- معرفت الافغاني: دغه اثر درسي بڼه لري او د پير محمد کاکړ له خوا په (1195 هـ ش) کال ليکل شوی دی.

يو ځل په (1341هـ) کې د ملاجان او ملا بسم الله تاجرانو له خوا چاپ شوی او بيا د اطلاعاتو او کلتور وزارت له خوا په (1356ش) کال چاپ شوی دي.

3- پښتو ګرامر: ددغه کتاب ليکونکی نواب انشا الله خان انشا دی. دغه کتاب په (1817ع) کال کې ليکل شوی او خيال بخاري د خپل ګرامر په سريزه کې ددغه اثر ذکر راوړی دی او د کتاب په باره کې نور څه معلومات نشته.

**4**- وافيه: د پښتو ژبې ګرامر دی چې مولف يې قاضي مير احمد شاه رضواني دی او دغه کتاب په (1890ع) کال په لاهور کې چاپ شوی دی. يوه نسخه يې د پخواني شوروي د تاجکستان د علومو د اکاډيمی په کتابتون کې خوندي ده.

5- اتاليق پښتو: ددې کتاب ليکونکی مولوي محمد اسماعيل نوميږي دغه کتاب په (1896ع) کال په پنجاب کې خپور شوی دی په دې اثر کې دا سمونو، فعلونو او نورو معمولي

محاورو استعمال راغلی دی: ددغه اثر یوه نسخه د پخواني شوروي تاجکستان د علومو د اکاډیمۍ په کتابتون کې خوندي ده.

**6-** تحفۀ الامیر: څنګه چې دغه اثر د امیر شیر علیخان نامه ته اهدا شوی دی نو په دغه نامه سره یادیږي دا هم د پښتو ګرامر دی چې مولف یې نور محمد افغان دی. دغه کتاب په (1279هـ) کال لیکل شوی دی. اثر په پارسی ژبه لیکل شوی او مثالونه یې په پښتو دي، په اثر کې صرفي او نحوي مسایل راغلي دي او یوم نسخه یې په پښتو ټولنه کې وه.

7- پښتو پښو یه : دغه اثر د پښتو مرکې له خوا لیکل شوی او په (1347هـ ق) کال په کابل کې خپور شوی دی.

8- معلم پښتو: دغه اثر هم د پښتو مرکې له خوا په (1314هـ ش) کال په کندهار کې چاپ شوی دی.

9- ګنجینه افغاني: قاضي رحیم الله پېښاوري دغه نوموړی اثر په (1938ع) کال کې بشپړ کړی دی.[1] همدارنګه قاضی رحیم الله خان یوبل درسي ګرامري کتاب په (1966ع) کال پېښور کې چاپ کړی دی [2]ددغه اثر تشریحات انګریزي دي.

10- خود اموز پښتو: دغه یو درسي ګرامري اثر دی چې په (1313 هـ ش) کال کې د کندهار طلوع افغان له خوا خپور شوی دی. ددې اثر مولف صالح محمد کندهاری دی.

11- پښتو ژبه لومړی او دوهم ټوک:

13- د پښتو ژبې لیاره: د پښتو ژبې د ګرامرونو په لومړي کتار کې ځای لري. ددغه اثر لیکونکی اروابناد محمد ګل مومند دی. د خپریدو نېټه یې (1317 هـ ش) (1938 ع کال) او په لاهور کې خپور شوی دی. دغه اثر درې برخې لري: د صرف، د نحوې، د مصدرونو برخه.

14- قواعد پښتو : دغه ګرامري لیکنه د محمد اعظم ایازي ده چې په کال (1318هـ ش) د پښتو ټولنې له خوا چاپ شو دی. په اثر کې دپښتو ژبې صرفي او نحوي قواعد څېړل شوي دي.

---

(1) Qazi rahimullah Khan. The Modern Pushto Instructor. Peshawar, I-II, 1938 -1943.
(2) Qazi Rahimullah Khan. The Modern Pashto Instructor. Peshawar, Volume I, 1966.

15- د پښتو درسي ګرامر: (پښتو شپږمه کلي) د ګرامري قواعد و ساده، روان درسي کتاب دی چې په کال (1945ع 1324هـ ش) کې پوهاند رښتین لیکلی او د پښتو ټولنې له خوا په کابل مطبعه کې چاپ شوی دی.

16- لومړی لیاربښوونکی: دغه اثر په کال (1326 هـ ش) (1947ع) د پښتو ټولنې له خوا د کابل په مطبعه کې چاپ شوی او ددغه کتاب لیکونکی هم پوهاند صدیق الله رښتین دی. په دې کې ګرامري قواعد په درسي بڼه لیکل شوي دي.

17- پښتو ګرامر لومړی جز: دغه ګرامر د ژبې د دستور او قاعدې ښودلو کتاب دی. د کتاب لیکوال پوهاند صدیق الله رښتین دی. نوموړی اثر په (1327 هـ ش) کال په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوی دی. په دغه اثر کې ډېر نوي پښتو ګرامري قواعد او اصطلاحګانې راغلي دي. دغه اثر یو لوی اکاډیمیك علمي ګرامر دی؟.او د پښتو ژبې د قاعدو ښودلو ښه علمي اثر ګڼل کیږي.

18- د پښتو ګرامر دویم جز: دغه مهم اثر په کال 1359 لمریز کې د لوی استاذ پوهاند صدیق الله رښتین له خوالیکل شوی و. دغه ګرامر بیا په 1370 لمریز کال د ښوونې او روزنې دوزات له خوا په دولتي مطبعې کې په 223 مخونو کې چاپ شوی دی. "په پښتو ګرامر لیکنه کې د ارواښاد لوی استاد پوهاند صدیق الله رشتین علمي څېړنې او اثار ستر ځای لري. د ګرامر لیکنې د اصولو په اساس یې داسې ګرامري څېړنې کړی او داسې اثار خپاره کړي چې تر اوسه پورې په پښتو ژبه کې په افغانستان کې ساری نه لري.

د لوی استاد دغه اثار نه یوازې په افغانستان کې بلکې د اکثرو بهرنیو ژبپوهانو لپاره چې د پښتو ژبې ګرامرونه یې لیکلي دي د استفادې مستند اسناد او اساسي منابع دی او په افغانستان کې تر اوسه پورې هم داسې د پښتو ګرامر نه دی لیکل شوی، چې د پښتو ژبې د عملي زده کړې له پلوه دې د لوی استاد پوهاند ریشتن د اثار ورځای ونیسي".

19- پښتو ګرامر: د لوی استاد پوهاند رښتین پښتو ګرامر (اول او دویم جز) دواړه ټوکه یو ځای په یوه ټوك کې د یونیورستي بك ایجنسي له خوا خپور شوی دی. د پوهاندرشیتن دغه ګرامر د پښتو ژبې اکاډیمیك اعلمي معیاری او مکمل اثردی. د نوموړي اثر فارسي متن ښاغلي سید محی الدین "هاشمي" د ارواښاد پوهاند صاحب په مشوره په پښتو ژباړلی دی.

20- ژبښودنه : ددې تدريسي اثر ليکوال هم پوهاند صديق الله رښتين دی. په دغه اثر کې د ژبښود يا ژب دود، د ليك دود او ليك ښود برخې راغلي دي. دغه اثر په 1341 لمريز بيا په 1342 لمريز دريم ځل په 1347 لمريز کال خپور شوی دی او څلورم ځل په پېښور کې چاپ شوی دی.

21- د پښتو مصدرونو لارښود: دا کتاب د پښتو ژبې د مصدرونو او د فعلي صرفي مسايلو ښه لارښود دی دغه اثر په کال 1344 د پښتو ټولنې له خوا خپور شوی دی. ددې اثر ليکونکی هم استاد پوهاند رشتين دی.

22- صرف و نحو پښتو: ددې کتاب مولف ښاغلی عظيم شاه خيال نوميږي کتاب په پېښور کې چاپ شوی ولی د چاپ نېټه يې نه ده ښودلې شوې، يوازې ليکوال د کتاب په سريزه کې ليکي چې دغه اثر د 1940 څخه تر 1944 ع کاله پورې ليکل شوی دی.

23- د پښتو قواعد: د ښاغلي حافظ محمد ادريس او ښاغلي عبدالحليم (اثر) ليکنه ده، چې د منځنيو ښوونځيو له پاره د درسي کتاب په توګه ورځنې کار اخيستل کيږي دغه ګرامر په اردو ژبې ليکل شوی دی.

24- د پښتو قاعدې: ددغه کوچني ګرامري اثر ليکوال سيد راحت زاخيلی دی چې په (1954ع) کال په پيښور کې خپور شوی دی.

25- د پښتو قواعد: ددې اثر مولفين سيد تقويم الحق کاکا خيل او سيد تسنيم الحق کاکا خيل دي. په 1953 کې پښتو اکاډيمي چاپ کړی دی.

26- د پښتو ژبې لنډ ګرامر: دغه کوچنوټې کتاب په 1320 شمسی کال په کندهار کې د فضل محمد کندهاري له خوا ليکل شوی دي.

27- اتاليق پښتو: خيال بخاری په اردو ژبه ليکلی دی. دغه رساله په کال 1969ع کې خپره شوې ده.

27- د پښتوګرامر طرحه: په دې نامه د پوهاند محمد رحيم الهام هغه څېړنې دي چې د پښتو ګرامر د فونولوژۍ په برخه کې معلومات وړاندی کوي. همدارنګه د ژبپوهنې د څانګې په برخه کې تشريحي معلومات هم لري دغه رساله د وږمې مجلې د 1344 لمريز کال په (1-2-3) ګڼو کې خپره شوې ده.

28- جامع القواعد د پښتو: مولف يې عبدالکريم بريالی دی. پښتو اکاديمي بلوچستان کوټه له خوا چاپ دی.

29- پښتو پښويه دښاغلي مجاور احمد زيار له خوا ليکل شوی دی.

30- پښتو نحوه: دغه اثر هم په کال 1366 لمريز د کابل پوهنتون له خوا ګستتنر په توګه چاپ شوی دی.

31- سوچه پښتو يوه جايزه: د ډاکتر خدايداد اثر دی په 1988ع کال د بلوچستان پښتو اکيډيمۍ چاپ کړی دی.

هغه ګرامري قلمي نسخې چې تراوسه چاپ شوي نه دي په لاندې ډول پيژندل کيږي:

1- پښتو ګرامر: دا د ښاغلي عبدالواحد خان له خواليکل شوی او دعامه کتابخانې په کتابتون کې د جوايزو په خانګه کې خوندی دی.

2- د پښتو مفصله صرف ونحو: د غلام جيلاني خان جلالي ليکنه ده، چې د عامه کتابخانې په قلمي نسخو کې ځای لري.

3- د پښتو کوچنی ګرامر: دغه اثر محمد دلاور ليکلی او په عامه کتابخانه کې خوندی دی.

4- پښتو ګرامر: دا د ښاغلي مولوي شيرګل هغه ليکنه ده، چې په پښتو ټولنه (د افغانستان د علومو اکاډيمي) کې خوندي ده.

## ب: د هغو ختيځپوهانو د ګرامري اثارو يادونه کوو چې د اتلسمې پيړۍ را په دېخوا ليکل شوي او خپاره شوي دي.

1- دروسي پوهان کلاپورت څېړنې د پښتو ګرامر په برخه کې د لومړي ځل له پاره لومړنۍ هڅه ده. ده خپل اثر په 1810ع کال چاپ کړ.

2- ترده وروسته ايوريسمن د کلاپروت د تحقيقاتو پر اساس څېړنې ترسره کړلې او دده دغه څېړنې په 1833ع کال د چاپ له ډګر څخه راوتلي دي.

3- په 1839ع کال کې ميجر. ر. ليچ د پښتو ژبې د ګرامر په برخه کې يوه وړه رساله ليکلې ده.

4- په 1842-1845 ع کلونو کې د پښتو ژبې ګرامري اثرونه د پروفيسور دورن له خوا ليکل شوي او چاپ شوي دي. د ختيځ پوهانو په ډله کې لومړی سړی دی چې د پښتو ژبې د علمي مطالعې له پاره يې هلې ځلې کړي دي.

5- په 1854ع کال کې د پښتو کوچنی ګرامر د واګن (Vaughan) له خوا په کلکتې کې خپور شو.

6- (د پښتو یا افغانانو د ژبې قواعد) په نامه ګرامر د جارج، هانري راورټي له خوا په 1855-1856 او دوهم چاپ 1960 کال په لندن کې له چاپه راوتلی دی.

7- (د پښتو یا پختو ژبې قواعد) د هانري والتربیلیوله خوا په 1867ع کال په لندن کې خپور شوی دی. او دوهم ځل چاپ یې په 1901 په لاهور کې شوی دی. دغه اثر په 1318هـ ش کال په پښتو ټولنه کې ترجمه شوی خو تر اوسه لاچاپ شوی نه دی

Grammar of the Pashto or the Language of the Afghans-8

دغه پښتو ګرامر په 1873ع کال کې د جرمنی ختیځ پوه ترومپ (Trumpp) لیکلی چې په لندن کې خپور شوی دی. اثر په جرمنی ژبه لیکل شوی او مثالونه یې په پښتو او هندي راوړي دي.

9- ګولډن شتیت: لومړنی جرمنی ختیځ پوه دی، چې د پښتو په باب یې یو اثر لیکلی دی. د معاصر روسی ختیځ پوه برتلس[1] په قول نوموړی د ختیځپوهانو له ډلې څخه لومړنی سړی دی چې د پښتو ژبې په هکله یې څېړنې شروع کړې دي. دده په اثر کې د ګرامر او لغتونو فهرست لیدل کیږي. دغه اثر په (1791ع) په سنت بتر زبورګ (لیننګراد) کې خپور شوی دی او داسې ښکاري چې دغه اثر تر اوسه د (برټش موزیم) په کتابتون کې خوندي دی[2].

10- ډارمستتر فرانسوی ختیځ پوهان دی په 1888ع کال کې (د افغانانو ژبه)[3] په نامه یو اثر لیکلی چې علمي او ګرامري ارزښت لري.

11- په المانی ختیځ پوهانو کې دګایګر نوم مشهور دی. ده په 1893ع کال کې دپښتو ژبې د فلالوژی په برخه کې یوه رساله لیکلې ده.

ده په دې رسالې کې د تهجی حروف په ترتیب سره او ډېر پښتو لغتونه د سانسکریټ، او ستا پخوانۍ او اوسنۍ پاړسو سره پرتله کړي دي.

12- د پښتو ژبې لنډ ګرامر د بیدولف له خوا په 1890ع کال په لندن کې خپور شوی دی.

13- په 1901ع کال د روس کیپل له خوا د پښتو ژبې یو ګرامر لیکل شوی دی[1].

---

[1] **برتلس، د پ تو ژبی کندهاري لهجهء لیند راد** 1935 **کال** 173 **مخ**

[2] **اولس مجله** 1972**ع کال** 201 **مخ**

[3] James Darmesteter, La lanague des Afghans, premier chapter dansla collection chants populaires des Afghans Paris 1888-189

[1]A.G.Roos keppal, A Manual of Pashto. London. 1901

14- ج، لاریمر هم د ختیځ پوهانو له ډلې څخه دی چې دوزیرو د لهجې یوګرامر او قاموس لیکلی دی. دغه اثر په 1902ع کال په لندن کې خپور شوی دی[2].

15- په 1908ع کال د پښتو ژبې د ګرامر او لغت په باره کې یوه کوچنۍ رساله د تومانوویچ له خوا په تاشکند کې خپره شوې ده. دغه اثر په روسی ژبه لیکل شوی دی.

16- داي. دي کاکس له خوا د پښتو ژبې ګرامر په 1911ع کال په لندن کې چاپ شوی دی.

17- لاریمر (ډ.ل.ز) (د پښتو نحوه) په نامه خپل اثر لیکلی او په 1915 کال په اکسفورډ کې خپور شوی دی.[3] دغه کتاب 377 مخونه لري او په پای کې د پښتو لغتونه په انګریزي ترجمه شوي دي. دغه اثر په 1319 ش کال د پښتو ټولنې له خوا پښتو شوی دی.

18- مارګن ستېرن د ختیځ پوهانو له ډلې څخه هغه ژبپوهان دی چې د پښتو ژبې په باب او د افغانستان د نورو ژبو لکه (پراچی، اورمړي، پامیري او نورستانی) ژبو کې هم څېړنې کړې دي.

ځکه ورته د پښتو پېژندونکو استاد او لاربنود ویلی شوی دی. دده ادبي او ژبنۍ څېړنې نه هیریدونکي دي. نوموړي د پښتو کلمو د ایتمالوجۍ په باب یو ښه علمی او ارزښت ناك اثر لیکلی دی. دغه اثر په 1927 کال په اوسلوکی چاپ شوی دی.

19- برتلس روسی ختیځ پوه په 1935 کال د پښتو ژبې کندهارۍ لهجه په نامه یوه رساله لیکلې او په لیننګراد کې خپره شوې ده. رساله په 1356 کال ترجمه او د هم دغه کال د وږمې مجلې په دویمه ګڼه کې خپره شوې ده.

همدارنګه برتلس د پښتو ژبې ترکیب او ساختمان په باب هم یوه رساله لیکلې چې په کال 1936 په لیننګراد کې خپره شوې ده.

20- اسلانوف د پښتو ژبې د ګرامر او لغاتو په باب د یادولو وړ خدمت ترسره کړی دی. اسلانوف د پښتو ژبې لنډ ګرامر د پښتو زده کوونکو د پاره په 1936 کال په مسکو کې چاپ کړی دی.

او بل اثریې د پښتو ژبې داصواتو ترکیب په 1950ع کال په مسکو کې خپور شوی او په پای کې د پښتو روسی قاموس ضمیمه هم لري. د پښتو ژبې معاصر ګرامر هم د نوموړي بل اثردی. ددغه اثر په باب زما په نظر بشپړ معلومات نه دي راغلی.

---

[2] د زیاتو معلوماتو دپاره د 1355 کال د وږمې مجلی دریمه ګڼه (46) مخ کې خپله د لیکوال مقاله و ورئ.
[3] د همدغه مجلې دریمه ګڼه (46) مخ.

21- ك. ا. ليبديف- د پښتو ژبې په ګرامر ليکنه کې زښت زيات کارګړی دی. د پښتو ژبې ګرامرونه يې په جلاټوکو (1) چې 1945 (2) په 1956ع (3) په 1970ع کلونو کې چاپ کړي دي.

22- ن. ا. دوريانکوف (د پښتو ژبه) په نامه يوګرامري اثر لري چې په1960ع کال په مسکو کې خپور شوی دی.

23- دوکتور ا. م. ارانسکی د پښتو ژبې ګرامر په نامه يوه وړه رساله ليکلې ده. د پښتو د معاصرې ژبې د فعل شکل او د تکرار دکته ګوريو په باب علمي ليکنه ګڼله کيږي. [1]

24- هربرت پنزل په افغانستان کې د خپلې استوګنې په موده کې ځيني علمي څېړنې کړي او په دغه وخت کې يې ځيني مواد راټول کړي او په دې اساس يې يو پښتو ګرامر د A Descriptive Study of the Dialect of Kandahar په نامه ليکلی دی. دغه کتاب په 1955ع کال په واشنګټن کې خپور شوی دي. دغه اثر پوهاند الهام ترجمه کړی او په 1340هـ. ش کال د کابل پوهنتون له خوا چاپ شوي دی. په دغه ليکنه کې د پښتو کندهاری لهجې فونيټکی، ګرامري برخې څېړلې دي او د ننګرهاری کندهاری لهجې ځيني توپيرونه يې څرګند کړي دي.

25- ډاکتربرژي بيچکا چکوسلواکی ختيځ پوه د پښتو خج په نامه يوه وړه رساله ليکلې ده.

26- زويا، مارتيا نيونا، کالينينا: د شوروي اتحاد د ختيځ پوهانو له ډلې څخه ده. دا ختيځ پيژندنې په انستيتوت کې د افغانستان څانګې يوه تکړه غړې وه. د کالينيني ټولې ليکنې او څېړنې د پښتو په ژبني او ګرامي موضوعګانو پورې اړه لري.

د معاصري ادبي پښتو ژبې لغت پوهنه 1972 د مسکو چاپ او په معاصره ادبي پښتو کې مرکبې تابع جملې 1966 د مسکو چاپ او په معاصره ادبي پښتو کې امريه جملې (1) شرطيه او تمنايي جملې (2) مقالې په روسي ژبه د نومورې ليکنې دي.

27- د پښتو ژبې د ګرامر ځيني اساسات: د ا-د- شافيف ليکنه ده. دغه اثر په روسي ژبه د زودين روسي پښتو قاموس په پای کې خپور شوی دی.

28- عبدالحفيظ- غنی يف هم د پښتو ژبې په باره کې ځيني ليکنې کړي دي. د پښتو ژبې د افعالو مجهولې صيغې او د پښتو ژبې د افعالو مجهولو صيغو جوړښت په باب ليکنې دي.

---

[1] **د تاجکستان دولتي پوهنتون علمي یاد ـتونه د بشري علومو سلسله،** 1954 **کال د** (223-201) **مخونو پورې.**

29- پښتو ګرامر د پروفیسر (ا-ل- ګرونبېرګ) له خوا لیکل شوی دی چې په لیننګراد کې په 1987ع کال چاپ دی او دغه ګرامر زما په خیال په شوروی اتحاد کې وروستنی لیکل شوی ګرامر دی چې چاپ شوی دی.

ګرامر Grammar: د ګرامر اصطلاح د لاتیني ژبې د ګراماتکس (Grammatics) او یوناني ګراماتیکې (Grammatike) له ارې (ریښې) څخه راپاتې ده.

په انګریزی کې (ګرامر Grammar) روسي کې ګراماتیکه ویل کیږي. ګرامر د تشریحي ژبپوهنې یوه غوره او ستره څانګه ده چې د یوې ټاکلې ژبې د کلمو، جملو درغاونې او جوړښت د قاعدو سیستم تشریح او مطالعه کوي او یا د ژبې صرفي (مور فولوجیکی)، نحوي (سینتکسي) جوړښت او ساختمان ترکتنې او څېړنې لاندې نیسي. په دې معنا چې د یوې ژبې د الفاظو (لغاتو) د تغیر او بدلون اشکال د هغوی ترکیب د جملو جوړښت او څرنګوالی مطالعه او تشریح کوي.

په ګرامري څېړنو کې ژبه د قوانینو تابع نه ګرځوله کیږي، بلکې ګرامر د ژبې قاعدې څنګه چې د هغې ژبې اصلي ویونکي استعمالوي راباسي اوشرح کوي یې. څنګه چې هره ژبه ځانته د جوړښت اصول او قاعدې لري نو ځکه د ټاکلې ژبې په ګرامري لیکنو کې خپله د هم هغې ژبې قواعد او اساس غوره ګڼل کیږي، چې د نوې ژبپوهنې د اصولو او اساساتو سره برابره خبره ده.

په ډیرو زیاتو لیکنو کې لیدل کیږي چې دغه موضوع په دوو اساسي برخو ویشله شوې ده:

1- مورفولوژي (د یوناني د مورف (Morph) (فورمه) او لوګوس (Logos) (پوهه) څخه لاس ته راغلې ده.

2- سینتکس د یوناني (Syntaxis) څخه د (یو ځاي کیدنه) (جوړښت) (ترتیب) او (رابطی) په معنا رواج موندلی دی[1].

د صرف او نحوې (مورفولوژي او سنټېکس) تر منځ بېلوالی اواړیکی:

## Syntax سنټېکس (نحوه)

[1] یو. د. ماسلوف. د ژبپوهنې مقدمه. ویشایا شکوله. مسکو. 1975 (163) مخ

په اصل کې نحوه يوه عربی اصطلاح ده چې لغوي معنا  يې لاره، طريقه، روش- دود- طرز) ده مګر د ګرامري معنا  له مخې د ګرامر هغه برخه ده، چې په جمله کې د کلمو په مطابقت ارتباط، ترتيب او ترکيب پاندې غږيږي يا په بله وينا نحوه هغې پوهنې ته وايي چې د يوې ژبې د جملو، عبارتونو، فقرو، غونډونو د جوړښت، ترتيب، تنظيم او جوړښت څېړي. نحوه (سينټېکس) له مورفولوژۍ، سره نژدې او مستقيمه رابطه لري ځکه د ژبې صرفي جوړښتونه تر ډېره ممکنه ځايه پورې د نحوې نظم جوړښت او ترتيب سره مشخصه او ټاکلې وظيفه لري. برسېره پردې په اساسي توګه هغه معنا  لرونکي عناصر چې عبارتونه او جملې جوړوي په واقعيت کې همدغه مورفيمونه (ازاد ، مقيد) دي چې د يوې ژبې په ګرامري ساختمانو کې ستره برخه اخلي.

په پښتو ژبه کې (نحوه او سينټېکس) دواړه اصطلاحګانې د ټاکلي ګرامري مفهوم او معنا  له پاره کارول کيږي او په ګڼ شمير ګرامرونو کې چې په پښتو ژبه کې ليکل شوي دي د عربي اصطلاحات لکه (صرف- نحوه) مروج اوتر اوسه پورې هم رواج لري، ولی په شلمه پېړۍ کې سنيټېکس د نحوې په معنا  يا نحوه د سنيټېکس په معنا  رواج شوې ده، چې البته د معنا  او مفهوم له مخې د يوه ټاکلي مقصد د پاره استعماليږي. که د سينټېکس اصطلاح ته ځيرشو او هغه هم د يوناني ژبې سينټيس د اصطلاح سره مقايسه کړو، ګورو چې په دواړو کلمو کې يوه ګډه ريښه پرته ده يعنی د (Synt سينټ) برخه په دواړو کې شريکه ده. چې د ترکيب، يو ځای کيدو، ګډون په معنا راتلای شي، نو څنګه چې Sinthesis د برخو د اجزاو د ترکيب په معنا  دی نو Syntax سينټېکس هم د ژبني ترکيب په معنا  ترجمه کيدای شي. ددې له پاره چې د سينټېکس په برخه کې زياتې څرګندونې تر لاسه کړو نو بده به نه وي چې د ژبپوهنې ددغې اصطلاح د استعمال ځای او څرنګوالی وپيژنو. ښکاره ده، چې ژبنی سيستم د ترکيب او ونې څخه پرته نه شي راتلای او په دې توګه (سينټېکټيک) ژبنی سيستم په جمله کې د کلمو او لغاتو د ټاکلو ځايونو، د کلمو د استعمالولو ترتيب او تنظيم څخه پرته بل شی نه دی او يا دا چې په نحوي سيستم کې د نحوي واحدونو او د هغوی مربوطه اجزاو تجزيې، ترکيب، ترتيب او څرنګوالی نحوه بلل کيږي.

همدارنګه دا سيستم د ژبني ترکيب د لغتونو او کلماتو د يووالي او په ژبه کې د لغتونو له استعمال څخه بحث کوي. دلته خو ددې خبرې يوه يادونه هم بې ځايه نه برېښي چې په مورفولوژۍ کې هم د لغاتو جوړوني او ترکيب څخه خبرې کيږي خو دا ډول لغات جوړونه او ترکيب بايد د

(Syntax سینټېکس) او نورو ژبنیو ترکیبونو سره ګډ نه شي. څنګه چې وینو په ترمینالوژۍ کې هم د کلمو او اصطلاحګانو د جوړوني او ترکیبونو څخه خبرې کیږي ولې سینټېکس، مورفولوژي، ترمینالوژي او نور ژبني ترکیبونه باید سره ګډ نه شي. د پورتنیو څانګو تر منځ پر مشابهتونو سربېره توپیرونه هم شته او هم شریکې نښې نښانې یې تر څېړنې لاندې باید ونیول شي ځکه پرته له دغه ډول څېړنې څخه نه شوکولای چې سینټېکس باندې وپوهیږو خو دا حقیقت ښایي هم هېرنه شي چې د ژبپوهنې د پورتنیو څانګو ترمنځ د توپیر کرښه دومره پراخه اوارته نه ده، چې یو تر بله دې نژدیوالی او ژبني اړیکي ونه لري.

## 2- صرف (مورفولوژی) د ګرامر د بلې اساسي برخې په توګه:

په دې پوهیږو چې مورفولوژي د ژبپوهنې د یوې څانګې په توګه د ژبې د کوچنیو واحدونو د جوړښت او سترکچربیان دی. یا په بله وینا سره مورفولوژي د ژبې د مورفیمونو د همدغو کوچنیو واحدونو ترکیب او رغاونې، ګردان او د هغو له ډولونو سره سروکار لري. دغه د ژبې مورفولوژیك سیستم دوې برخې لري:

1- انفلکشن (صرف):

2- ډرایویشن (اشتقاق).

د ګرامر په دې څانګې کې د ځینو اصطلاحګانو لکه (مختاړي، وروستاړي، منځتاړي، تنه، مونډ یاریشه) سره مخامخ کیږو- همدارنګه د مورفیم- الومورف او داسې نور مورفولوژیکي اصطلاحات هم تر سترګو کیږي. په سینټېکس کې هم د ځینو اصطلاح ګانو سره مخامخ کیږو لکه تګمیم او سینتاکم، نوله دې پلوه مورفولوژي له سینټېکس څخه جلا او بېلولی شو. څنګه چې د مخه موهم وویل، نحوه Syntax هغه علم ته وایي چې مونږ ته د جملې د جوړولو قاعدې او د هغې داجزاو ترتیب او د کلمو ترمنځ رابطه یو د بل سره راښیي. همدارنګه ویلی شو چې مورفولوژي او سینټېکس د خپلو ځانګړو اصطلاحګانو او خصوصیاتو په درلودلو سره په تیوریتکي لحاظ که له یوې خوا سره بېل دي نو له بلې خوا یو تر بله اړیکی هم لري.

د پورتنیو څانګو د تیورۍ سیستمونه او نظامونه یو له بله توپیر لري. سینټېکس د مورفولوژي، ترمینالوژي او نورو ژبنیو مرکباتو سره هم ژبنۍ اړیکې ساتي مګر د ژبې د نحوي واحدونو او نحوي کته ګوریو اصلي برخه جمله ده. دلته د اسوال رامنځته کیږي چې جمله د ژبې د

نورو نحوي واحدونو څخه څه توپير لري، د ژبې د جملو او نورو واحدونو (فونيم، مورفيم، کلمه، ترکيب (غونډ) توپير په څه کې دی؟

د ژبې دغه نور واحدونه لکه (فونيم، مورفيم، کلمه، ترکيب (غونډ) په ځانګړي توګه پوره مطلب نه رسوي يا په ساده ډول وايو:

مونږ پرته له جملو څخه پوره، مطلب ترلاسه کولای نه شو. د جملې په باب يو ژبپوه داسې څرګندونه هم کړې ده:

(جمله يو بشپړ پوره مطلب رسوي)[1] ولې بيا دا خبره تر يوې اندازې پورې په منطقي لحاظ سمه نه ګڼي. دی وايي چې د بشپړتوب او نابشپړتوب په باب کوم خاص بريدنه شو ټاکلی، ځکه په وينا کې جملې يو په بل پسې دوام پيدا کوي او يا دا چې جمله د خپلې قرينې په نسبت په ډېر لنډ چوکاټ کې څرګنديدای هم شي. د مثال په توګه په سوال او ځواب کې دغه خبره ښه څرګنديدای شي[2].

په دې حساب سينټکس او فونولوژي هم يو تر بله ژبني اړيکي درلود لای شي. د مثال په توګه که ووايو: ميرويس پوهنتون ته ولاړ؟

ته ښه يې؟

ځواب به داسې وي- هويا اه

دلته که (هو- اه) په يوازې او ګوښې توګه و څېړو نوليدل کيږي چې (اه) يو فونيم دی او (1) هم د فونيمونو په ډله کې راځي که (1) ياهو ته د نورو ګرامري ځانګو له نظره وکتلی شي نو څرګنده به شي چې د ګرامر له مخې دغه (1)، (هو) جمله، متن، ځواب دی.

د سينټکس له مخې به فريزاو د مورفولوژي له مخې به ورته مورفيم وويلای شو له دې کبله د ژبپوهنې يا د ګرامر د ځانګو ترمنځ ژبني خام مواد په ځينو وختونو کې شريك وي خو دا چې هره ځانګه يې د خپلې تيورۍ له مخې په خپل مربوطه او ټاکلي چوکاټ کې څيړي، بېلا بېل خصوصيات لري. بله دا چې تيوري او تطبيق د ژبپوهنې د ټولو تيوريګانو زيږنده ده يا په بل عبارت د تيوري او عمل خصوصيت د ژبپوهنې د ټولو ځانګو ګډه او شريکه خاصه او مميزه ده. له دې امله په ټولو برخو کې په کاريږي.

---

[1] ب، ن، کوله وين. د ژبپوهنې مقدمه. ويشيا شکوله، مسکو 1973ع کال (197-177) مخونه.

[2] همدا ماخذ (197مخ).

څنګه چې لیدل کېږي ننی سینټکسي تیوري پراخه ساحه لري. د ژبې د علم مطالعه او څېړنه دغه ټولې خواوې په پوره او بشپړه توګه نه شي څېړلی. مونږ هم په دې برخه کې اړیو چې د ژبې د نحوي ساختمان او جوړښت د پوهیدانې له پاره ځینې خاصې او مهمې نښانې په ګوته کړو.

**نحوه:** هغه پوهه ده، چې د جملو، فقرو، عبارتونو، غونډونو د جوړښت د قاعدو څخه غږیږي. د جملې د اجزاو، قاعدې هم په کې بیان او څرګندیږي. په نحوي چاپیریال کې نحوي ترکیبونه (غونډونه) او جملې د معنا او جوړښت له مخې په نظر کې نیول کیږي. په سینټکسي چاپیریال کې د نحوي واحدونو یعنی تګمیم په تشکل او جوړښت کې د مورفیونو ترکیب، تنظیم، بدلون او ګرامري رابطو باندې خبري کیږي.

له دې کبله د ژبپوهانو له خوا د ژبې د مختلفو او بېلا بېلو برخو د پېژندنې او مطالعې له پاره ځیني خاص او جلا واحدونه ټاکل شوي دي. لکه فونیم چې د صوتي جوړښت تر ټولو ډیر کوچنی واحد دی او مورفیم د لفظي جوړښت تر ټولو معنا لرونکی کوچنی واحد دی. دغه راز په نحوي چاپیریال کې هم سنتاګ، تګمیم (نحوي واحد) تر ټولو کوچنی واحد ګڼل شوی دی.

تګمیم: د نحوي جوړښت هغه واحد دی چې د خپل ځان نه د کوم بل لوی واحد کومه برخه نه وي او هم د جوړښت په لحاظ د تجزیې وړ هم نه وي. یعنی هغه کوچنی واحد دی چې په سینتاکتیکي یا نحوي سیستم دننه ژبنی فورم پرې اندازه او ښودل کیږي ځکه چې په نحوي جوړښت کې (سیستم) تګمیم (نحوي واحد) دی او د یوه نه تجزیه کیدونکي جز په توګه منل شوي دی نو جمله هم نه تجزیه کیدونکی واحد ګڼل شوې ده. (په هره ژبه کې جمله د جوړښت په لحاظ یونه تجزیه کېدونکی واحد دی ) په دې معنا چې که تجزیه شي، پوره مفهوم له لاسه ورکوي.

څنګه چې هره ژبه بې شمیره جملې لري نو ښایي چې داسې فکرونه شي چې د هرې جملې لپاره دې بې شمیره ساختماني شرحې او قاعدې ولري. په واقعیت کې د هرې ژبې اصلي ویونکي یو لړ محدود قواعد د ژبې د جملو د پېژندنې (درك) او تولید (رغاونې) له پاره لري او د مفاهیمو د څرګندولو د پاره د همدغو ټاکلو (محدودو) قاعدو څخه ګټه اخیستل کیږي. په دې توګه نحوه هم په ژبه کې محدود قواعد د جملو ټاکلو او ښودلو لپاره شرح او توضیح کوي. د همدې اصل له مخې نحوه دغه ډول پېژنو:

نحوه د جملو په معنا او مفهوم باندې پوهیدل دي. ددغه نظر له مخې په نحوه کې د معنا مطالعې ته زیات ارزښت ورکول کیږي.

د یوې ژبې شکل د هغې د معنا نه ډېر با ثباته دی او په اسانۍ سره د هغې پوهیدنه او پېژندنه کیدای شي او علت یې هم هغه د ژبې چاپیریال دی چې د ژبې شکلونه (فونیمونه، مورفیمونه، نحوي واحدونه تکمیمونه) په کې شامل دي. مګر په مقابل کې د معنا چاپیریال او سیمه ډیره پراخه وي په دې علت سره چې ډیر ژبني شکلونه د یوې څخه ډیرې معنا ګانې لري او په ډېرو ځایونو کې کارول کیږي.

څنګه چې په نحوي کې د کلمو تنظیم د هغوي تړون او ارتباط د یو بل سره چې څنګه خبرې، فقرې، غونډو نه، عبارات او جملې جوړ وي څېړل کیږي نو ځکه وایو چې د نحوي (Syntax) وظیفه د جملو او د هغوی ساختماني شرح ده یعنی د یوې ژبې د عبارتونو، فقرو (غونډونو) جملو او کلمو د نظام او جوړښت اصول او لارې چارې مطالعه کوي. په عمومي توګه یا په کلي ډول ښایي د نحوې برخه د هرې جملې په باب لاندینیو پوښتنو ته سم او علمي ځواب ورکړي.

1. د یوې جملې تر ټولو کوچنۍ برخه کومه ده، یعنی هغه کوچني واحدونه چې جملې جوړ وي؟
2. د جملې دغه برخې (اجزا) څنګه یو دبل سره یو ځای کیږي تر څو جملې جوړې کړي؟ یوه جمله باید تر وروستي بریده پورې وویشل شي.
3. وروسته له هغې چې د یوې جملې مورفیمونه مو په ګرامري واحدونو وویشل لاژمه برېښي چې ددې پوښتنې د ځواب په لټه کې شو چې دغه ګرامري واحدونه څه نومیږي. او کوم دي؟

د ژبې په ګرامري مطالعې کې د الفاظو معنا او ساختمان دواړه په نظر کې نیول کیږي.

د نړۍ په ژبو کې هره ژبه په خپل وار که له یوې خوا د ژبپوهنې په بنسټ ځینې ګډ ګرامري خصوصیات لري ولې له بله پلوه ځانګړې او ټاکلې خصوصیات هم لري چې د هرې ژبې په سترکچر او جوړښت پورې اړه لري.

د مثال په توګه که د نړۍ ژبوته ځیر شو په ځینو ژبو کې د صرف او نحوې ترمنځ کوم ټاکلی او معین بېلوالی نه لیدل کیږي نو په دې توګه صرف او نحوه په بېلا بېلو برخو او فصلونو (څپرکو)

باندې نه څېړل کېږي. خو د نړۍ په اکثروژبو کې صرفي او نحوي جوړښتونه (سربېره پر ځينو اړيکو) په اسانۍ سره جلا او بېل مطالعه کېږي.
څنګه چې زمونږ مطلب د پښتو ژبې د نحوي موضوع ده د څېړل شويو موادو له مخې په پښتو ژبه کې صرفي او نحوي جوړښتونه په اسانۍ سره جلا او بېل مطالعه کېږي.
په دې توګه د مورفيم پوهنې او سينټکسي بحثونه په بېلو بېلو برخو بېلېږي. په نحوې کې نحوي ترکيبونه، غونډونه او جوړښتونه د ترتيب او تنظيم داسې اصول او قواعد لري چې د اشتقاق او ګردان د طريقو او ډولونو تابع دي.

## نحوي ترکيبونه (غونډونه)، جملې او د جملو ترکيبونه د نحوي واحدونو په توګه:

څنګه چې د مخه وويل شو، نحوه د ګرامر د يوې څانګې (برخې) په توګه د يوې ژبې ترکيبونو، عبارتونو، غونډونو، فقرو، جملو د جوړښت ساختمان او په هغوی کې د کلماتو د ترتيب، مطابقت او رابطې اصول او قاعدې مطالعه او ترڅېړنې لاندې نيسي او يا د هغوی د قاعدو څخه غږېږي او د جملې د اجزاوو، ارکانو، قاعدو او قوانينو بيان په کې کېږي، نو له دې کبله ژبپوهانو د ژبې د مختلفو او بېلا بېلو برخو (اجزاو) د پېژندنې او مطالعې له مخې ځينې بېل او خاص واحدونه ټاکلي دي. د بېلګې په توګه د ژبې د صوتي جوړښت او ساختمان دپاره فونيم (Phoneme) او د صرفي (لفظي) ساختمان له پاره مورفيم (Morpheme) د واحدونو په توګه منل شوي دي په دې معنا چې:

1- فونيم د فونيم پوهنې (Phonology) واحد يا نه تجزيه کيدونکي صوتي غږي په توګه.

2- مورفيم د مورفيم پوهنې (مورفولوژۍ Morphology) يا نه تجزيه کيدونکي لفظي واحد په توګه.

3- دغه راز په (Syntax نحوه) کې هم د ځانګړو اصطلاحګانو سره مخامخ کېږو که څه هم په پښتو ژبه کې دغه سينټکسي اصطلاحګانې خاصه نومونه نه لري مګر په نورو ژبو لکه (انګريزي، لاتيني، روسي او داسې نورو ژبو کې د (Tagmeme) تګميم (Syntagam سينتاګم) اصطلاحات شته چې په هماغه ژبو کې خپله معنا څرګندولای شي.

تګميم، سينتاګم، تاکسيم يا سينتاکتيکي ترکيب (نحوي جوړښت) هغه کوچنی نحوي واحد دی چې (د سينتاکتيکي) يا نحوي سيستم د ننه ژبنی فورم پرې اندازه او ښودل کېږي.

په معاصره ژبپوهنه کې د تګمیم، سینتاګم اصطلاح د یونانی سینتاګمه (Syntagma)څخه د یو ځای کیدو په معنا سره راغلی دی ولې په مختلفو او جلا اثارو کې یې معناګانې په توپیر سره راغلي دي(1).

په دې برخه کې د شوروي ژبپوه ریفرماتسکي نظر د سینتاګم په باب داسې دی:

(سینتاګم ددوو غړو د ترکیب (مورفیم، لغت، د کلماتو ترکیب) څخه چې یو تر بله اړیکې ولري عبارت دي).

همدارنګه نحوه (Syntax) په دې ډول پېژندلی او څېړلی شو.

په نحوي سیستم کې د تګمیم سینتاګم تجزې او ترکیب او د هغوي ترتیب او تنظیم ته سینټېکس ویل کیږي. په بله وینا سره په نحوي سیستم کې د نحوي واحدونو او د هغوي د مربوطه اجزا وو تجزیه، ترکیب، تنظیم او څرنګوالي ته نحوه (سینټېکس) ویل کیږي.

څنګه چې په نحوي جوړښت کې (تګمیم Tagmeme یا سینټاګم Syntagma یو نحوي واحد دی او بیا یو نه تجزیه کیدونکی (نه بیلیدونکی) نحوی واحد په توګه راوړل شوی دی.

نو دغه نحوي واحدونه ازاد ګرامري شکلونه جوړوي، په دې معنا چې هر یو غونډ (ترکیب) په مستقله توګه پوره مطلب ورسوي. جمله چې د معنا له مخې یو نه تجزیه کیدونکی نحوي واحد دی نو په پښتو ژبه کې مونږ جمله د نحوي واحد په توګه منو (په هرې ژبې کې جمله د جوړښت، معنا له مخې یو نه تجزیه کیدونکی واحد دی چې بشپړ مطلب رسوي).

په دې اساس (نحوه) د جملو او کلماتو د ترکیب د پوهې او مطالعې بحث ته وايي. د کلمو د ترکیب یا هغه اصطلاحات چې د دوویا ډېرو کلمو (لغتونو) د یو ځای کیدو څخه منځته راغلي وي یا دا چې د دوویا زیاتو لغاتو او اداتو د یو ځای کیدو (پیوستون) له کبله جوړ شوي وي.

یادونه:

ځینې پوهان د ژبنې ترکیبونو Phrases (جملوي جزیا نیمګړې جملې) مطالعې او څېړنې ته هم (Syntax) وايي.

که چېرې دا ومنل شي نو په سینټېکس پورې تړلې تیوري به هم د ترکیبونو (Phrases) تیوري وي.

---

[1] **ب. ن له وین، د ژبپوهن مقدمه، مسکو** 1973 (253) **مخ.**

د ترکیبونو یا فریز د تیورۍ ځخه مطلب هغه مېتود دی چې د هغه په واسطه د جملې متن بیان او جملوي اجزا جوړېږي او یا دا چې د ترکیبونو (Phrases) له مخې متن بیان او جمله جوړېږي.

څنګه چې پوهیږو ژبه د علایمو (نخښو) یوه دستګاه ده. صوتي نخښې، لفظي نخښې یعنی دا چې صوتي نخښې یوازې او یا هم په ترکیبي ډول لفظي نخښې جوړوي او مطلب تر سره کوي او دغه نخښې بیا په خپل وار یوازې او یا هم په ګډه کلي (عمومي) معناوي جوړوي چې ګرامري شکل ګټل کیږي او په پای کې خبرې جوړیږي. دغه اړیکې چې د خبرو د مختلفو برخو او همدا راز د هغوي د اشکالو ترمنځ موجود دي د نحوې موضوع جوړوي.

کله چې یو ګرامري شکل د یوه لوی شکل یوه برخه وي نو داسې ویلی شي، چې دغه نوموړی شکل مقید (ناخپلواک) دی خوکه چېرې د یوه لوی شکل برخه (جز) نه وي بیانو ازاد ګرامري شکل دی چې مونږ دغه ازاد مستقل ګرامري شکل د تکمیم یا نحوي واحد په نامه یا دوو چې جمله یې محتوا ده.

د مثال په توګه که ووایو: دغه څوك دی؟ نو ددغه سوالیه جملې په ځواب کې که وویل شي، هلك نو مطلب پوره رسول کیږي په دې توګه هلك په دغه حالت کې یو تکمیم دی ځکه یو ازاد او خپلواك ګرامري شکل دی او د خپل ځان نه د کوم بل لوی شکل برخه (جز) نه دی مګر که د (هلك سره د هوښیار لفظ ورزیات کړای شي او د یوګرامري شکل په توګه (هوښیار.. هلك) په ترکیب کې ولیدل شي نو بیا دلته (هلك) د خپل ځان نه د لوی شکل (ساختمان) د جز په حیث کارول شوی دی او مقید دی نو ځکه تکمیم ورته ویلای نه شو.

مګر که چېرې دغه ترکیب په ځانګړې توګه سره وګورو یعنی (هوښیار هلك) په توصیفي حالت کې تکمیم دی، ولې بیا هم که د (هوښیار هلك راغی) په ګرامري شکل کې څنګه چې (هوښیار هلك) د خپل ځان نه د لوی شکل یوه برخه ده نو ځکه تکمیم نه دی مګر (هوښیار هلك راغی) په خپل ذات کې تکمیم او یوه جمله ده. که چېرې دغه جمله په دې ډول سره (کله چې هوښیار هلك راغی) ووایو دلته ګورو چې په ګرامري شکل کې څنګه چې په یوازې او ځانګړې توګه یې معنا بشپړه او پوره نه ده او یو بل ګرامري شکل ته اړتیا لري نو ځکه دغه غونډ په دغه ډول سره تکمیم او جمله نه شو بللی، بلکې د یو بل شکل سره یو ځای ګرامري شکل یعنی پوره جمله (Sentence) جوړ وي لکه (کله چې هوښیار هلك راغی کارونه وویشل شول) دلته (کله چې هوښیار هلك راغی) او (کارونه وویشل شول) ګرامري شکلونه دواړه مقید دي یعنی د معنا له مخې یو بل سره رابطه او تړون لري.

څنګه چې د شکل له مخې ګورو چې د جملې دواړه برخې هره یوه یې تقریبا پوره جملې دي او کیداي شي په خپلواك صورت کې هم استعمال شي او تګمیم وګڼل شي، چې دا جملې د فقرې (Clause) په نامه یادیږي. نو ځکه د ژبپوهنې د اساسونو په دې برخه کې د علمي څېړنو له مخې تګمیم چې د جملې محتوا هم ګڼل کیږي داسې تعریفوو: (تګمیم یا نحوی واحد، داسې یو ګرامري شکل دی چې د خپل ځان نه د لوی شکل برخه (جز) نه وی او یا د ګرامري شکلونو تر ټولو کوچنی معنالرونکی واحد تګمیم (Tagmeme) دی. نو تګمیم تر ټولو کوچنی نه تجزیه کیدونکی نحوي واحد دی چې یو مستقیم، مستقل او با مفهومه ګرامري شکل دی چې په نحوه کې پراخه برخه لري.

په دې لاندې مثال کې ګورو:

(هلکه) د ندا په حالت کې که څه هم دغه ډول خپلواك ګرامري شکل د جوړښت له مخې نیمګړی دی مګر څنګه چې پوره معنا انتقالوي نوځکه (Uttrance) ورته وایي او (هوښیاره هلکه) هم همدا ډول دی. خو (هوښیار هلك راغی) که څه هم د شکل او مفهوم له مخې پوره دی مګر ددې له پاره چې ځینې وخت مقید کیږي لکه په دې مثال کې (کله چې هوښیار هلك راغی.. دلته جمله مقیده شوه تر څو چې دویمه برخه رانه شي مطلب نه بشپړیږي.

په دې اساس (کله چې هوښیار هلك راغی) مقیده فقره یا (Clause) بلل کیږي مګر (هوښیار هلك راغی) خپلواك ګرامري شکل دی. که په خپلواکه توګه وکارول شي. نو ځکه یې جمله Sentence یا تګمیم بولو.

که چېرې یوګرامري شکل د خپل ځان نه د کوم بل لوي شکل برخه یا جزوي نو مقید ګرامري شکل دی او که چېرې، د خپل ځان نه د لوی شکل برخه نه وي نو خپلواك ګرامري شکل دی چې تګمیم یا نحوي واحد هم ګڼل کیږي.

اوس چې مو د تګمیم یا نحوي واحد په باب څرګندونې کړې نو لومړی غواړو د جملې په باب ځینی لنډې څرګندونې او هم د ژبپوهانو له خوا د جملې په باب نظریې وړاندې کړو بیا به د پښتو ژبې ترکیبونو (Phrases) جلمو په ډولونو، جوړښتونو باندې رڼا واچوو. البته زمونږ د موضوع اصلي برخه ده.

## جمله (Sentence)

جمله يوه عربي كلمه ده، په لغت کې مجموعې ته ويل کيږي.

جملــه د انګريــزي Sentence ، فرانــسوي Propostion ، جرمنــي Staz ، هــسپانوي Oracion او روسی ژبی پريدلو ژينيه سره برابره معنا لري، په هره ژبه کې د خپلو خپلو ځانګړو معناګانو درلودونکی وی. ولې ګرامري معناګانې يې سره ورته يا يوګېل کيږي[1] د مثال په توګه:

(په انګريزي ژبه کې که د سېنتېنس کلمې ته ځير شو او څېړنه پرې وکړای شي سربېره پردې چې د جملې معنا لري يو لړ داسې نورې معناګانې لکه (پريکړه، حکم، جزا) او نورې هم لري. همدارنګه د سېنتېنس کلمه درټلو لغنت پرويلو او محکمې ته راکښلو په معناګانو سره هم راځي[2].

دلته مونږ د جملې يا سينتيينس د لغوي معنا سره څه کار نه لرو، بلکې غواړو په دې برخه کې د جملې په هکله د ګرامر له مخې رڼا واچوله شي يعنی د جملې پيژندنه او څېړنه په ګرامري چاپيريال کې تر سره شي. بنايي چې ددې مطلب د څرګندولو له پاره څه نا څه ګرامرونو ته پاملرنه وکړو، خو مخکې تردې چې د جملې پېژندنه او تعريف وکړو بايد يادونه وشي، د جملې په باب بشپړ او مکمل تعريف چې هيڅ ډول سمونه او اصلاح ونه غواړي او د تل له پاره ثابت او ځاي پر ځاي وي نشته ځکه تعريفونه او مفاهيم ورځ په ورځ لاپسې کره او بدلون مومي. د تفکر دودې او پرمختګ پروسه (جريان) ځای په ځای نه دريږي د بشپړتيا او پرمختګ په لور درومې.

په دې برخه کې ممکن په ګرامرونو کې په عنعنوي تعريفاتو باندې زيات ټينګار شوی وي خو ددې پرنسيب له مخې چې په څېړنه کې تېر معلومات او پخوانی شتمنې که څه هم نيمګرتياوې به ولري د نويو څېړنو په هکله بايد تر مطالعې لاندې ونيول شي تر څو نسبتا کره او نوې معلومات تر لاسه شي.

که نن د جملې په باب زمونږ معلومات نيمګړي وي نو بنايي چې بله ورځ بـه لاپسې بشپړ او زيـات شي. د پخوا څخه د جملې پـه هکلـه ډېر تعريفونـه شوي او د بېلو بېلو پوهـانو لـه خـوا ورتـه جلا جلا تعريفونه او څرګندونې شوي دي ولې په علمي توګه د جملې پـه بـاب معين تـاکلی او ثابت تعريـف نـه ليدل کيږي مګر په مقابل کې يې د دوو سونه زيات تعريفونه په دې برخه کې موجود دي[1].

# د جملې په باب د پوهانو نظريې

---

[1] و.س. اخمانووه، ژبنی اصطلاحي قاموس، مسکو 1966، 347 مخ.
[2] کابل مجله، 1356ل کال، لومړي ه (10) مخ.
[1] د. ای. روزينتل. معاصره روشي ژبه، مسکو 1964 (280) مخ

کله چې مونږ په وینا او لیکنه کې خپل فکر په شفاهي یالیکلي بڼه افاده کوو نومجبوریو چې جملې جوړې کړو ځکه چې زمونږ وینا د جملو په مرسته ځرګندیږي یا (د جملو څخه جوړه ده) په دې توګه زمونږ افکار یوازې په جملو کې او د هغوي په مرسته افاده کیږي. په دې ترتیب د جملې پېژندنه د ارستو زماني څخه پیل کوو.

جمله د یو منطقي قضاوت د افادې او پوهولو سلسله ده.

ارستو د جملې په باب داسې ویلي دي:

(هره نظریه (مفهوم) د جملې په شکل ځرګندیږي مګر ټولې جملې مفاهیم نه ځرګندوي. په جملو کې ممکن سوال، خبر داری او داسې نور مفاهیم ځای شي خوپرته له دې څخه ممکنه ده، چې یو فکر – د شعور د ځینو نورو اشکالو په واسطه هم ورسول شي. د دماغ فعالیت انځوروي:

جمله د احساس د ځرګندولو وسیله هم ده)[2]. همدارنګه په پخوانی فلالوژي کې جمله (مفاهیم د الفاظو په مرسته ځرګند شوي وي او یا د الفاظو ترکیب چې پوره یو مطلب ځرګند کړي[3] په په لرغوني یونان کې د نن نه 2000 کاله د مخه یوناني یوه د یونیوس تراکس Dionysius Thrax د یوناني ژبې د قاعدې په باب یوه کوچنۍ رساله لیکلې وه. په هغې کې یې د جملې تعریف او پېژندنه په لاندې ډول کړې ده:

(جمله په نظم او نثر کې د کلمو او الفاظو د مجموعې څخه عبارت ده چې پوره معنا او مفهوم ځرګند کړي)[1]

وروسته بیاغربي (لویدیځ) ګرامریستانو هم دغه تعریف منلی او کارولی دی. ولې د غربي ګرامریستانو څخه د مخه عربی ګرامر پوهانو هم دغه تعریف منلی دی چې کلام یا جمله هغې ته ویل کیږي چې اوریدونکي د هغې څخه پوره مطلب لاس ته راوړي.

په 19 پیړۍ کې دا هڅه رامنځ ته شوې ده چې جمله د یوه منطقي قضاوت فعلي ترکیب په توګه وپیژندل شي. د منطق له نظره د جملې په هکله بوسلایف ویلی دي (هغه قضاوت (نظر) چې د الفاظو په واسطه ځرګند کړای شي جمله ده)[2].

---

[2] **همدغه اثر او همدا مخ.**

(3) **یو، س، ماسلوف، د ژبپوهن مقدمه (اساسات) مسکو،** 1975، **(**633**) مخ.**

[1] **پوهنوال محمد رحیم الهام روشی جدید در تحقیق (دستور زب ان دري، پوهن ی ادبیات و علوم بشري، کابل (**1349 **ش کال).**

د 19 پېړۍ پای او 20 پېړۍ پيل په لويديځه نړۍ او روسيې کې د جملې په باب روحياتي نظر منځ ته راغلی دی.

ددغه نظريې نمايندګانو څخه په روسيه (شوروی) کې 1-1 شاخمتوف دی چې د جملو په باب يې خورا زياتې څېړنې کړي دي خو بشپړې نتيجې ته هم نه دی رارسيدلی[3] تر دې وروسته ف.ف فورتوناتوف د عنعنوي ګرامر پلوي د جملې په باب داسې بيان کړي دي. جمله يو ډول د کلمو د ترکيب څخه ګڼي او ليکلي دي:

(دوينا هغه ګرامري ترکيبونه چې په جمله کې استعماليږي په جمله کې د ګرامري مبتدا او ګرامري خبر په توګه راځي)[4].

ايراني ژبپوه ډاکټر پرويز خانلري د جملې تعريف د تراکس په توګه کړی دی يوازې (د نظم او نثر الفاظ يې ترينه ويستلي دي. په دې ډول (جمله مجموعه يې از کلمات است که بر روی هم دارائی يك مفهوم تمام وکامل باشد)[5].

همدارنګه ځينو پوهانو د جملې تعريف داسې کړی دی:

---

[2] ف.ي. بوسلايف، د روسي ژب تاريخي رامر، 1858 (110) مخ.

[3] يو. س. ماسلوف، د ژبپوهی اساسات، مسکو، 1975- 233 مخ.

[4] ف.ف. فورتونانوف د روسي ژب رامر مسکو 1899- (36مخ).

[5] پوهنوال محمدرحيم الهام، روش جديد در تحقيق دستور زبان دري، پوهن ی ادبيات وعلوم بشري، کابل 1349- (141) مخ.

جمله - د الفاظو او کلمویو داسې ترکیب دی چې یو بشپړ مفهوم افاده کړي. تر اوسه پورې په ګڼ شمیر ګرامرونو کې جمله یا کلام داسې راپېژندل شوی دی.

کلام، جمله هغه عبارت ته وایي چې لږ تر لږه له دووکلمو څخه جوړه شوې وي او بیا په دوه ډوله بېلېږي، بشپړه جمله او نیمګړې جمله.

د بشپړې جملې څخه په همدغو ګرامرونو کې مطلب دا دی چې اروېدونکي یې په اورېدو سره پوره مطلب ورځیني واخلي.

نیمګړې جمله چې اورېدونکي ترې پوره او بشپړ مطلب وانخیستیلای شي. لکه (د ګلانو غونچې، توره وریځ) ... او نور.

همدارنګه د جملې تعریف داسې هم راغلی دی: جمله د کلمو د یو ځای کیدو څخه جوړیږي چې د نحوې کوچنی واحد دی.

په بل ځای کې داسې بیان راغلی دی:

د یو مقصد د څرګندولو دپاره مجبوریو چې کلمې سره یو ځای کړو نوله دې امله د یو شمیر کلمو او لفظونو له یو ځای کیدو څخه کلام او جمله منځ ته راځي او د جملې په مرسته خپل مقصدونه یو بل ته څرګندولای شو. هغه توکي چې جمله یا کلام ورڅخه جوړیږي د کلام جزیا اجزاپلل کیږي.

دغه پورتني تعریفونه د پښتو ژبې په ګرامرونو کې لکه د محمد اعظم ایازی قواعد پښتو د محمد ګل مومند (د پښتو ژبې لیاره) د پوهاند رښتین په (ژبښودنه)، (پښتو ګرامر، د عظیم شاه خیال) صرف و نحو پښتو) ... او داسې نورو کې راغلي دي.

د امریکې ژبپوهان بلوم فیلډ د جملې ساختماني تعریف دا ډول کړی دی. د جملې ساختماني معنا هغه معنا ده چې د جملې د توکونو په مرسته څرګندیږي ببله دې چې قاموسي (لغوي) خواوې په نظر کې ونیول شي.

د جملې د جوړښت او ساختماني معنا یوازې د بلوم فیلډ په ذریعه نه ده ښودل شوې بلکې اکاډیمیسن ډ.ل. و شیر به هم دغه ډول موضوع بیان کړې ده.

د بلوم فیلډ مقصد د جملې له ساختماني معنا څخه د مورفیمونو هغه تنظیم او ترتیب دی چې د جملې په لغتونو پورې اړه نه لري یعنی لغوي ترتیب او تنظیم نه دی چې دا نظریه هم د چا مسکې

له خوا پر مخ ولاړه او پراختيا يې وموندله[1] ترانسفور ميشنل ګرامر چې په 1957کال چا مسکي ليکلی دی د نحوي جوړ ښتونو په نامه اثر دی. دوي څرګنده کړه، چې که د يوې جملې کلمې په غير شعوري ډول انتخاب شوي وي نو بيا به هم ساختماني معنا ولري خو په دې شرط که ژبني فورمونه منظم او سم ترتيب شوي وي. نوموړي ژبپوهان (بلوم فيلډ) ګرامر ته د ژبنيو فورمونو د معنا لرونکي نظم په توګه ګوري او زياتوي چې په ژبه کې د ژبنيو فورمونو معنا لرونکي نظم او ترتيب د ژبې ګرامر جوړوي او دا هم زياتوي چې د ژبنيو فورمونو د پاره دا لاندې څلور لارې شته دي.

1- ترتيب 2- داواز برابروالی 3- فونيټکي مشخصات 4- د هغو فورمونو انتخاب چې د معنا په څرګندولو کې د عامل په توګه مرسته کوي.

د جملې د تعريف د کره کولو له پاره ښايي جمله د فورم او معنا له مخې په پام کې ونيوله شي ځکه يوازې فورم جمله نه شي راپېژندلې او معنا هم په ګوښې توګه سره د جملې پېژندنه نه شي کولای.

که چېرې داومنو چې جمله يو داسې نحوي واحد دی چې د فورم او معنا په شريك او ګډ ارتباط سره ځانګړی ژبنی سيستم جوړوي نو دا به هم ومنو چې دا نحوي واحد (جمله) يو ژبنی سيستم هم دی. څنګه چې ژبه يو جلا ژبنی سيستم دی او جمله په دې سيستم کې د نحوي واحد په توګه پېژنو نو بيا ويلی شو چې جمله هم يوکوچنی ژبنی سيستم دی.

په دې کې هيڅ شك نشته چې جمله معنا لري او يو مفهوم افاده کوي نوله دې کبله ښه به داوي چې د بلوم فيلډ نظريې ته پاملرنه وکړو.

دی وايي متکلم او خبرې کوونکی د عبارت په ذريعه اوريدونکی دې ته اړباسي چې شرايطو او حالاتو ته ځواب ورکړي. دغو شرايطو او حالاتو او په هغوی پورې مربوط ځواب ته د هغه عبّارت معنا وايي يا په بل عبارت کله چې يو ژبنی فورم له خولې څخه ووځي نو اوريدونکي هغې ته هم هغسې ځواب او عکس العمل ورکوي، چې د ټاکلي مربوطه ژبني شکل معنا ګڼل کيږي.

بلوم فيلډ وايي چې د ژبني فورمونو معناګانې په عملي او علمي توګه هغه وخت ټاکل کيدای شي چې د پوهې ټولې ځانګې بشپړې شي او پرمختګ ته ورسيږي نو بيا ويلی شو، چې جمله سربېره پر نورو سيستمونو يو سيمبوتيك سيستم هم دی په دغه سيستم کې (جمله د سيميم له

---

[1] Transformational Generative Grammar.

نظره اندازه کیږي او سیمیم د جملې د اندازې له پاره معنوي واحد دي. څنګه چې څرګنده ده په کوي جوړښت کې اساس د نحوي واحد جمله (تګمیم) دی په دې معنا جمله دوینا هغه واحد دی چې مطلب ورسوي. جمله یا خبري یا پوښتني یا تعجبي یا امري وي او هر یو نحوي واحد د دوورکنونو د اساس څخه جوړ شوی وي لکه مسندالیه او مسند، لاکن جمله داجزاو په لحاظ په بسیط، مرکب او، مختلط شکل تقسیمیږي.

اوس چې په ګرامرونو کې د جملې په باب څه معلومات وړاندې شو ښه به داوي چې د جملې په هکله د مورفیم بحث ته هم ورننوځو.

لیدل کیږي چې د نحوي واحدونو Syntactic Structure په جوړښت کې لفظي واحدونه Morphologicl Structure برخه لري. دغه واحدونه د موقعیت او نورو خصوصیاتو له مخې په ترکیبونو او جملو کې په اسمونو، صفتونو، قیدونو، فعلونو او نورو اقسامو باندې تقسیمیږي، چې بیا دغه لفظي واحدونه د مستقل والي او استعمال له مخې په ازاد (خپلواک) او مقید (نا خپلواک) باندې سره بېلېږي.

مقید لفظي واحدونه: په صرفي او اشتقاقي جوړښتونو کې د ازادو لفظي واحدونو سره ونډ مختاړي، ورستاړي نښلي. په ژبه کې (ازاد- اساسی واحدونه) د مقیدو واحدونو سره ارتباط پیدا کوي یعنی په ترکیبونو او جملو کې د الفاظو ارتباط او یو ځای کیدنه صورت مومي او په دغه ترتیب سره الفاظ په یوه ټاکلي نحوي حالت کې واقع کیږي چې د ساختماني شکل Function Forma په نامه یادیږي.

لفظي واحدونه هر یو ځانته یوه خاصه ګرامري ګټه ګوري لري لکه اسمونه چې د جنس (نارینه، ښځینه) عدد (مفرد، جمع) حالت (مستقیم، غیرمستقیم (اصلي، غیراصلي) صورتونه لري. او فعلو نه دوجهه لازمي، متعدي د شخص (1،2،3) او زماني مقولات لري. اشاري نژدې او لري صورتونه هم ښیي.

که مونږ د مورفیم د تعریف د پاره د جزیاتو څخه تېر شونو خپل بیان داسې لنډوو، د یوې ژبې په خبرو کې کوچنی لفظي واحد دی چې معنا ولري. که چېرې په جمله کې ددغه مورفیمونو دریځ ته پاملرنه وکړونو وبه لیدل شي، چې په جمله کې د مورفیمونو د ځای تغییر او تبدیل د جملې په ارګانیزیشن (جوړښت) کې تغییر او بدلون پېښوي، له دې کبله هره جمله ځان ته جلا سیستم لري. همدغه علت دی چې دیوې ژبې زده کړه د جملو په یادولو اوزده کولو باندې زیات اړخ لګوي. د مجردو لغتونو په یادولو سره ژبه نه زده کیږي.

که په یوې جملې کې د مورفیمونو د راوړلو په وخت کې د دوي ترمنځ د لازم زماني او مکاني تناسب او رابطه ونه ساتله شي نو په داسې حالت کې سمه او اصلي معنا په لاس نه راځي.

لکه د (زه له پوهنځي څخه راغلم) 2- (زه له پوهنځي څخه راتلم) په جملو کې ګورو:
1- که (زه) څخه وروسته (را) مورفیم د زماني فاصلې له مخې داسې راشي چې د (غل) او (تل) دریښو څخه وروسته (em م) د مورفیم سره زماني رابطه ونه ساتي نو بیا دغه تاکلې معنا نه څرګندوي.
له دې امله جمله سربېره پر مورفیمیك سیستم زماني او مکاني سیستم هم لري که چېري دغو سیستمونو ته پاملرنه ونه شي دجملې څخه معنا نه شو اخیستلای.
اوس به دې ټکي ته ځیر شو، چې د جملې سیستم څه شی دی که څه هم د جملې سیستمونه زیات دي خو مونږ د تعریف د پاره په خپله سیستم تعریفوو، وروسته به بیا تروسه وسه د جملې په نورو سیستمونو باندې خبرې وکړو.
سیستم: هغه نظم او ترتیب دی چې د هغه په تغییر سره په (جوړښت) کې هم تغییر او بدلون راځي.
ترڅو چې د جملې د ساختمان اجزا او په هغې پورې مربوطه جریانونه او ممیزات ونه پېژندل شي تر هغه وخته پورې د جملې پېژندنه ګرانه ښکاري.
څرګنده شوه چې جمله د ژبنیو فورمونو داسې مجموعه ده، چې نحوي واحدیې جوړ کړي دی نو دلته بې ځایه نه ده، چې دغه مجموعه مطالعه کړو.
د ژبنۍ جملې د توکونو مجموعه یو میخانکي مجموعه او امبارنه دی بلکې داسې مجموعه ده، چې هره پرزه = برخه (ژبنۍ فورم) جلا او ځانګړې ځای لري.
د مثال په توګه د پښتو ژبې په یوې جملې کې ګورو چې فعلي ژبنۍ فورم داسمي ژبني فورم پر ځای او اسمي ژبنۍ فورم د فعلي ژبني فورم پر ځای نه شي راتلای مګر که را هم شي یا به جمله بې معنا او یا به د هغه مفهوم بل ډول افاده کیږي.
کهووایو: قلم مات شو. په دې ساده جملې کې (قلم) د یو اسمي جز په توګه د جملې د مبتدا په حیث او که ددغه اسم (قلم) ځای بدل کړو او د جملې په خبر پورې یې و تړولکه دغه لاندې جمله:
اڅك قلم مات کړ یا اڅك قلم واخیست.
په دې جملو کې (قلم) د جملې په فعلي برخه کې راغلی چې د خبر له اجزاو (متمم) څخه ګڼل کیږي.
همدارنګه صوتي واحدونه د ماقبل دستوري جوړښتونو[1] په نامه یادیږي که څه هم په خپله معنا نه لري مګر د معنا د تغییر سبب کیږي. د ژبې په دواړو دستوري (ګرامري) ساختمانونو کې دنده لري.

[1] محمد رحیم الهام، تیوري های نحو در زبان دري، کابل پوهنتون، 1358 هـ ش کال

همدارنګه جمله د فونو لوژي له مخې د ژبنیو اوازونو داسې مجموعه ده، چې نحوي واحد جوړوي. دغه ژبني اوازونه د ځانګړي سیستم لاندې خاص نظم او ترتیب پیدا کوي. او داسې اختیاري تسلسل نه دی، چې د ژبني سیستم د اصولو له رعایتولو څخه پرته زده شي بلکې د ټولنې د اجتماعي قرار داد سره سم منځته راځي او په هم هغه چوکاټ کې دننه زده کیږي.

په هر صورت جمله د ګرامر له مخې اوس داسې پېژندل شوې ده:

د وینا یو داسې خپلواك او مستقل صورت دی، چې په کوم بل صورت (ساختمان) کې د ګرامري ساختمان د کومې بلې برخې حیثیت ونه لري.

د مثال په توګه:

1. څوك خبرې کوي؟
2. چا خبرې وکړې؟
3. په کوټه کې څوك ناست دي؟
4. تا څوك ولید؟
5. دغه لیکوال څوك دی؟

د پورتنیو سوالیه جملو ځواب د قرینې له مخې داسې راځي: (میرویس) چې دغه ځواب یو ځانګړی او مستقل شکل دی او د کومې بلې جملې یا (د کوم بل صورت) د کومې برخې حیثیت نه لري.

مګر د پورتنیو جملو بشپړ ځوابونه داسې دي:

1. میرویس خبرې کوي.
2. میرویس خبرې وکړې
3. په کوټه کې میرویس ناست دی.
4. مامیرویس ولید
5. دغه لیکوال میرویس دی.

میرویس په دریو لومړیو جملو کې د مبتدا (فاعل) په توګه ځواب دی.

په څلورمه جمله کې د مفعول په توګه ځواب دی.

په پنځمه جمله کې د خبر د جز په توګه ځواب ګڼل کیږي.

په دې لحاظ میرویس یوازې او په ځانګړې توګه هم سم ګڼل کیدای شي.

ولې په دا ډول جمله کې لکه: میرویس توره او میړانه وکړه.

دلته وینو چې میرویس په پورتنۍ جملې کې د یوه غړي (جز) په توګه دنده ترسره کوي.

یعنی میرویس د جملې معنا نه لري، بلکې په دغه غونډ (ترکیب) کې یوه برخه ده. چې په یوه مستقل او خپلواك صورت کې د ګرامري جوړښت او ساختمان د یوې برخې حیثیت لري، چې دلته میرویس توره او میړانه وکړه، ټول عبارت یوه جمله ده.

په عمومي توګه پوره جمله هغه ساختمان دی چې مسند الیه (فاعل) مفعول او مسند (فعل) په کې موجود وي.

**لنډ عبارت**: یا جمله هغه ته وایي چې منصرف (اوښتونکی) فعل ونه لري او په خپله د کومې پوره جملې (ساختمان) برخه نه وي.

همدارنګه مونږ دغه ډول جملې په مقایسوي ډول تر څېړنې لاندې نیسو لکه:

1- زرمینې – راشه ! ځواب : ښه درځم

2- زرمینې راځې؟ هو درځم

دغه دواړه جملې د ساختمان او جوړښت له مخې د مبتدا او خبر د ترکیب او رغاونې له مخې زیات توپیر نه لري مګر د خصوصیاتو او ممیزاتو د سیستم له مخې پوره توپیر په کې لیدل کیږي، ځکه پورتنی هره یوه جمله د جلا او ځانګړي ځواب او عکس العمل غوښتنه کوي. د همدغه اصل له مخې وایو چې جمله هغه نحوي واحد دی چې په تشریحي ساختمان کې د ځانګړو اصولو تابع دی یادا چې جمله هغه نحوي واحد دی چې ټاکلی اهنګ، تون، لحن او موسقیت لري. له دې امله جمله د پورتنیو ممیزاتو له مخې هم یوه له بلې څخه بېلیږي په دې لحاظ د جملې په بېلونه کې عروضي واحدونه لکه (فشار، اهنګ، لحن، فصل ، وصل) خاص ارزښت لري.

د تیرو خبرو په استناد یوه جمله لاندیني خصوصیتونه به لري:

1- نحوي واحد دی 2- دا نحوي واحد د مورفیمونو ترکیب دی.

3- د ژبنیو اوازونو سیستم دی. 4- دخاص زماني او مکاني سیستم تابع دی.

5- هره جمله ځانګړی لحن، تون او موسقیت لري.

6- (د بلوم فیلډ په نظر جمله کیدای شي یو اواز وي یا یو نوم وي)[1] لکه ددغې لاندې جملې ځواب: اکارونه دې خلاص شول؟

ځواب هو

2- د پښتو ژبې او ادب پلار څوك دی؟

ځواب، خوشحال

7- جملی ته د متن د اندازه کولو واحد هم ویلی شو.

---

[1] **کابل مجله، 1356 کال (6-2) مخ لومړۀ ه.**

8- جمله د معاشرت په جریان کې د فکر د انتقال، اخبار اساسي وسیله ده. همدارنګه جمله دوینا او محاورې ژبني واحد په توګه دیوه بشپړ او مکمل فکر څرګندونه ده. دغه رازهره جمله په ذهن کې د منعکس شوي واقعیت څرګندویه او ددغه ډول واقعیت په باب ټاکلې اظهار یه ده، ځکه ویونکی د جملې په چوکاټ کې نه یوازې د خارجی نړۍ او چاپیریال د پېښو په باب د څه شي اظهار کوي بلکې په دې باب د خپل نظر ټکي بیانوي چې ویل یې له واقعیت سره څه ارتباط ولري[1] مونږ په خپلې څېړنې کې د پښتو ژبې د نحوي واحدونو (جملو) په شاوخوا کې د پورتنیو یا دوشوو نظریو له مخې دغه لاندې پرنسیپونه په خیال کې ساتل غواړو او دیوې بشپړې جملې عمومي مشخصات داسې بیانوو:

1- د بشپړې جملې څخه مطلب هغه خپلواك (مستقل) ګرامري شکل دی چې د جوړښت او معنا له مخې بشپړ مطلب وي.

2- د جملې په جوړښت کې د جملې اصلي او اساسي ارکان[2] موجود وي.

3- جمله (نحوي واحد) چې د کوم بل لوی شکل (ساختمان) برخه (جز) نه وي.

4- جمله نه تجزیه کیدونکی نحوي واحد یعنی تګمیم د ی‌که تجزیه شي خپله بشپړه معنا له لاسه ورکوي.

5- په جمله کې د تشکیلېدونکو اجزاو (برخو)[3] ترمنځ نحوي رابطه موجوده وي او په وینا (خبرو) کې مشخص عروضي خصوصیات (چې وروسته به پرې رڼا واچوله شي) او هم په لیکنې کې دلیك دود د نښو نښانو په مرسته د هرې جملې حدود (بریدونه) سره جلا کیږي چې ددغو نښو د استعمال د ځایونو پېژندنه ضروري ده.

---

[1] ز. م. کالینینا، په معاصره ادبي پ  تو ک   مرکبي جمل  ،  مسکو 1966 ع،4 مخ.

[2] عبّارت له (مسند الیه، مسند) یا (مبتدا او خبر)  خه دي چ   عمده او اساسي ساختماني اجزاوې په دې أول وي (اسیمه- اسم، ضمیر. . .) + فعل یا اسمی غونأ + فعلی غونأ.

3- تشکیلوونکی برخه Constituent داسـ  یوه کلمه یایو ساختمان یا یو مورفیم ته وایي چ   په کوم یوه لوی جوؤ  ت ک   د هغه د جز په تو  ه شامل وي. باید په یاد ک   وساتل شي چ   ول تشکیلوونکي اجزا نحوي ساختمانونه دي، خو خورا أ  ر واؤه او کوچني تشکیلوونکي اجزا نحوي جوؤ  تونه نه دي. همدارن  ه  ول نحوي ساختمانونه تشکیلوونکي اجزادي خوبیخي نحوي ستر ساختمانونه تشکیلوونکي اجزا نه دي. ددې خبرې معنا داده چ   که عبارت (جمله) په خپله د کوم بل اوإده عبارت (جملی) یوه برخه وي نو تشکیلوونکي جزورته ویلای شو.

# دويم څپرکی

## ترکیب (غونډ- عبارت)

څرګنده ده چې ویل پوهنه (نحوه) د ګرامر د یوې برخې په توګه او په یوې جملې کې د کلمو (مورفیمونو) د ګرامري ترکیب یو ځای کیدو طریقه، ترتیب او معنوي رابطه په تاکلې ژبې کې څیړي په دې معنا چې د جملو لفظي جوړښت او معنوي رابطه څیړي او همدارنګه د جملو لفظي جوړښت او معنوي ځانګړتیاوې مطالعه کوي، نو څنګه چې د نحوي څیړنې د مطالعې او څیړلو اصلي او اساسي مواد جملې دي نو په هم دې توګه د کلمو ترکیب (د الفاظو، غونډونو) هم د جملو په جوړښت کې یو توکی یا یوه برخه ګڼله کیږي.

لکه: هلك ولوید. یوه ساده جمله ده او دغه جمله د دووکلمو څخه جوړه ده. لومړۍ برخه یې (هلك) چې د جملې **فاعل** (مسند الیه) اودو همه برخه یې (ولوید) **فعل** (مسند) دی. که چېرې په همدغې جملې کې دجملې د **فاعل** (هلك) سره ځیني مورفیمونه چې نحوي رابطه سره ولري یو ځای شي په دې وخت کې دغه **فاعل** (هلك) د خپلو مربوطه اجزاوء سره یو ترکیب (عبارت) دی لکه:

ښه هلك، یو ډېر ښه هلك، یوغښتلی تکړه ښه هلك . . . دغه ډله کلمې د یوبل سره نحوي رابطه لري او په پورتنۍ جمله کې د هلك سره د مبتدا په حیث راځي او هم د هلك په ځای راتلای شي چې دغه د ترکیب (غونډ) (عبارت) په نامه یادیږي. همدارنګه د (ولوید) **فعل** سره چې د جملې مسند دی یو شمیر نورې کلمې یو ځای شي. دغه ډله کلمې چې نحوي رابطه هم سره ولري د جملې مسند (خبر) کې سره راځي.

لکه: سخت ولويد. په زوره ولويد. سخت په زوره ولويد. يا وران ولويد. ډېر وران ولويد. خورا ډېر وران ولويد. بې ځايه خورا ډېر وران ولويد.

په پورتني اسمي غونډ کې ګورو چې هلك د غونډ اصلي جزدي او د خپلو متعلقاتو سره يو اسمي غونډ ګڼل کيږي او په دويمه برخه کې ولويد د فعلي (غونډ) (عبارت) اصلي او اساسي جزدی نو فعلي غونډ (ترکيب) ورته ويلی شو. مګر دواړه ترکيبونه (اسمي او فعلي) په ځانګړې توګه بشپړ مطلب نه رسوي او ديوه غونډ (ترکيب) په راوړو سره په ځانګړي توګه معنا ناتمامه پاتې کيږي.

## 2- د ترکيب اصطلاحګاني او نظريې:

اوس چې د ترکيب (Phrase) په هکله څه معلومات ترلاسه شول. غواړو په پښتو ژبه کې د افغاني او خارجي ګرامر پوهانو نظريې او اصطلاح ګانې هم ذکر کړو.

په دې برخه کې تر هر څه د مخه غواړو د پښتو ژبې د کلمو ترکيب چې په لاندې ماخذونو کې د سلواسچېتانيا[1] د کلمو ترکيب (Phrases [2] نيمګړي ترکيبونه[3] کلام ناقص[4] ناقص مرکب[5] عبارت[6] او غونډ په نومو سره نومول شوي دي تر غور او مطالعې لاندې ونيسو.

دا خو جوته خبره ده، چې دوينا او خبرو په ترڅ کې الفاظ او وئيونه په ځانګړي توګه پوره معنا نه شي څرګندولی، نو د يوې معنا د پوره او بشپړې څرګندونې له پاره د ويئونو (الفاظو) ترکيب، يو ځای کيدنه او د هغوي ترمنځ نحوي رابطه ضروري خبره ګڼله کيږي.

په جملو کې د کلمو ترکيب، رابطه او د ګرامري قاعدو خيال ساتل ډېره ضروري خبره او مهم رکن دی. څنګه چې ترکيبونه په جملو کې ستره نحوي دنده لري نو ښايي چې ددغو ترکيبونو په برخه کې پوره څېړنه او مطالعه وشي.

مونږ ته معلومه ده چې د نړۍ په ډېرو ژبو کې د ترکيبونو موضوع ډېره ستره برخه لري چې بيا په بېلا بېلو ډلو او ګروپونو ويشل کيږي.

---

[1] ب. ن، کله وين، د ژبپوهنی مقدمه، مسکو 1974 (193) مخ.

[2] ا. ليسي پ تو قاموس، پ تو ولنه، کابل 1354 (451) مخ.

[3] محمد ل مومند، د پ تو ژب ليارہ. بلخ 1317، (317) مخ.

[4] محمد اعظم ايازي، قواعد پ تو، کابل 1327 (182) مخ.

[5] عظيم شاه خيال، صرف ونحو پ تو (283) مخ.

[6] محمد رحيم الهام روشی جديد در تحيقيق دستور زبان دري. کابل پوهنتون 1349(15) مخ.

که چېرې مونږ خپلې لرغونې مورنۍ پښتو ژبې ته پاملرنه وکړو او په ډېر غوراو ځير ورته وګورونو جوته به شي چې په پښتو ژبه کې هم دغه ترکيبونه راز، راز او د اندازې نه زيات دي. او هر ترکيب په خپل ځای او موقع ځانګړې معنا او مفهوم ښندي.

په پښتو ژبه کې ترکيبونه ځانله خاص ډولونه او قسمونه لري چې هر يوبه يې په خپل ځای وښودل شي.

دلته دا خبره ضروري ده، چې د مستقلو ترکيبونو Phrases ، اصطلاح (ايډ يوم Idiom) او داسې نورو ترکيبونو سره توپير وشي.

## ترکيب (غونډ)

ترکيب د دوويا زياتو (خپلواکو او ناخپلواکو) کلمو او مورفيمونو يو ځای کيدو څخه عبارت دی چې اجزايې يو له بله سره ګرامري ارتباط ولري، يا د دوو يا زياتو خپلواکو او نا خپلواکو مورفيمونو مجموعه ده چې برخې يې يو بل سره ګرامري رابطه ولري. د ترکيبونو د څېړنې او مطالعې څخه داسې جوتيږي چې ترکيبونه د معنا، جوړښت له مخې بيل ډولونه لري.

ترکيبونه (غونډونه) برسېره پردې چې د جملو په جوړونه کې برخه لري په ځانګړې توګه د نحوي واحدونو وظيفه هم سرته رسوي.

ځيني ګرامريستان لکه ف.ف. فورتون اتوف[1] اوم. ن. پيترسون[2] نحوه Syntax د ترکيبونو (Phrases): څېړنې او مطالعې ته وايي او جملې يې د ترکيبونو يو ډول (قسم) ګڼلي دي.

د پښتو ژبې په ګرامرونو کې د ترکيبونو ذکر په لاندې ډول راغلی دی. پښتو ژبې ليارہ کې داسې څرګندونه شوې ده:

(د نحوي علم د خبرې کلام ترکيب او تاليف او د کلمو د استعمال موقع بيانوي.

کلام: هغه نطق او عبارت ته وايه شي چې د مقصد د بيان د پاره ويل کيږي.

ترکيب: د خبرو هغه بيئت (ډلګی) ته ويل کيږي چې د دووليا زياتو کلمو څخه حاصله شوې وي. ترکيب دوه ډوله دی يو (نيم ګړی ترکيب بل بشپړ ترکيب)[1].

---

[1] معاصره روسي ژبه. مسکو 1970.

[2] همدا اثر.

[1] محمد ل مومند، د پ تو ژبي لياره، بلخ، 1317 کال 316 مخ د زياتو معلوماتو د پاره همدغه ماخذ و وري.

همدارنګه محمد اعظم ایازي په خپلې کوچنۍ رسالې پښتونحوه کې د ترکیبونو یادونه کړې او د کلام اقسام تر سرلیك لاندې داسې لیکي: کلام پردوو ډولو دی:

(کلام ناقص او کلام تام)[2]

همدارنګه د هر برت پنزل پښتو ګرامر کې د پوره عبارت او لنډ عبارت ذکر راغلی او هم د مرکبو کلمو یعنی د ترکیب Phrases اصطلاحګانې یادې شوې دي. دلته عبّارت مقصد له جملې څخه دی. په دې توګه د ترکیب په برخه کې دا داتې ترکیبونو اسمي غبرګو ترکیبونو، فعلی ترکیبونو او داسې نورو یادونه یې کړې ده. عظیم شاه خیال (د پښتو رف ونحوه) کې د ترکیبونو په باب داسې څرګندونه کړې ده: مرکب د دوو یا ددوو څخه زیاتو کلمو یو ځای کولو ته ترتیب وایي او په دې کې چې کومه خبره یا جمعه جوړه شي هغه ته مرکب کلام وایي مرکب یا کلام دوه قسمه دی.

1- ناقص یا نیمګړي مرکب کلام (2) تام مرکب یا کلام یا جمله.

په ناقص مرکب کې داسې وایي: هغه مرکب ته وایه شي چې څه پوره خیال یا مطلب ترې نه څرګندیږي یعنی داسې مرکب چې اوریدونکی ترې پوره فایده وانخستی شي او تسله یې پرې ونه شي او هغه د پوره مطلب د بیان منتظر وي لکه:

د انوراس، هغه دارو، ناقص مرکب تل د یوې جملې جزوی[3].

همدارنګه د ترکیبونو په باب د پوهاند رښتین علمي اثر[4] په لاس کې لرو چې د لغت پوهنې (لکسیکالوجی) په برخه کې ډیر ښه معتبر مواد لري. د ترکیبونو په برخه کې هم په زړه پورې مواد لري، چې پوره د استفادې وړ ګڼل کیږي. په دغه اثر کې د اسمي ترکیبونو ټول ډولونه. غبرګ ترکیبونه، بشپړ نابشپړ، عددي، ضمیري، قیدې، صفتي او داسې نور... او هم دارنګه د فعلي ترکیبونو مثالونه هم راوړل شوي دي.

[2] محمد اعظم ایازي، پ تو نحوه، کابل 1327.

[3] عظیم شاه خیال، صرف نحو پ تو، پ ور. 283 مخ.

[4] صدیق ا ر تین، پ تو اشتقانونه او ترکیبونه، کابل 1327هـ ش کال.

همدارنګه پوهاند رښتین د پښتو ګرامر دویم ټوک کې د نحوي واحدونو (ترکیبونو) په برخه کې پوره مفصل معلومات وړاندي کړي دي[1].

## د ترکیب مشخصات:

اصل مطلب په دی کې دی چې دغه ډول ترکیبونه د مفهوم او معنا د افادې له مخې د الفاظو، کلمو سره یو شي ګڼل کیږي مګر فرق یې دادی چې دغه ډول ترکیبونه مرکب مفهومونه څرګندوي او د نومونو، فعلونو معنا ګانو ته زیاته ټاکلې او مشخصه بڼه ورکوي.

د مثال په توګه: خواږه انار، لومړی لوست، د پښتو لوست، اته بجې. نو په دې اړه ویلی شو:

1. ترکیب د دوویا زیاتو مستقلو یا نامستقلو کلمو څخه جوړیږي.
2. په ترکیب کې یوه کلمه د بلې تابع ګرځي.
3. په ترکیب کې د کلمو ترمنځ نحوي رابطه ټینګیږي.
4. ترکیب نسبت کلمې ته پراخه او مرکب مفهوم څرګندوي.
5. د جملې او ترکیب ترمنځ توپیر او بېلوالی ضروري دی.

## د پښتو ژبې په ترکیبونو کې د کلمو ترتیب:

د کلمو ترکیب د ګرامري قاعدې (دمطابقت) له لارې سرته رسیږي او په دې کې د کلمو ترتیب هم برخه لري.

په دې اساس که چیرته د کلمو په ترکیب کې د کلمو ترتیب او مطابقت (سمون) په پام کې ونه نیول شي نو پوره مطلب او معنا هم لاس ته نه راځي.

د بېلګې په توګه: په پښتو ژبه کې د توصیفي ترکیب (غونډ) ترتیب داسې دی چې لومړی صفت او بیا موصوف راځي. (صفت + نوم). په ګرامري لحاظ صفت د موصوف تابع وي لکه: ناولې څېره، ښېرازه سیمه، ښکلې ودانۍ/ مګر که وواېو څېره ناولې، سیمه ښېرازه نو بیا دا هغه ترکیب (Phrase) نه دی چې ټاکلې معنا څرګنده کړي په دغه صورت سره د کلمو او ویئونو بې اساسه ترکیب (یو ځای کیدنه) کومه ټاکلې معنا نه ورکوي.

---

[1] **پوهاند صدیق ا ر تین، پ تو رامر** 2 **وك (**1359**کال)،** 1370 **لمریز کال کابل چاپ.**

2- د پښتو ژبې په نحوي سیستم کې د کلمو د رابطې وسیله (سرینې، پسینې) دي چې د هغو په مرسته هم ترکیبونه جوړیږي لکه: د هېواد شاړې دښتې، د افغانستان غرونه.

3- څنګه چې د کلمو په ترکیب کې د کلمو (الفاظو) رابطه او ترتیب ارزښت لري نو همدارنګه په جملو کې هم ډېر ارزښت لري، څکه د ټول ترکیب معنا او مطلب د کلمو په ترتیب پورې اړه لري.

4- په پښتو ژبه کې د ترکیبونو د څېړنې له مخې ویلی شو چې ترکیبونه د نورو اریایي ژبو په څېر په جلا او بېلو ډلو او ډولونو ویشل کیږي.

## د معنا او جوړښت له مخې:

**په پښتو ژبه کې خپلواك ترکیبونه:** هغه دي چې د مستقلو مورفیمونو له ترکیب څخه جوړ شوي وي دغه ترکیبونه په ټاکلو او ناټاکلو باندې هم بیلیږي:

الف: ټاکلي ترکیبونه: هغه دي چې د ترکیب اجزا یې ټاکلي او ثابت وي[1] او د هغو اجزاو پر ځای نشو کولای بله کلمه راوړو څکه دغه ترکیب په خپل ځای ټاکلی او پوره مطلب په مستقیمه توګه وړاندې کوي لکه:

د کابل پوهنتون، د ژبو او ادبیاتو پوهنځی، د قبایلو وزارت، د پښتنو مشر، د میوند ځلی، د ملالۍ مېړانه، د پښتنو مېړانه، نوی ښار، پښتني دودونه.

ټاکلي ترکیبونه معمولاً د یوې مرکبې کلمې په توګه پریوه معین او مشخص شي یاکس پورې اړیکه پیدا کوي.

ځیني دغه ډول (ترکیبونه) او عبارتونه هم خاص نومونه جوړ وي. ټاکلي ترکیبونه د اضافي او توصیفي له ډول څخه دي[2].

ب: نا ټاکلي ترکیبونه: هغه دي چې جوړوونکي یا ترتیبوونکي برخې یې ټاکلې او ثابتې نه وي په دې معنا چې د جوړ شوي ترکیب د اجزاو پر ځای په بېل بېلو مواردو (ځایونو) کې ځیني نورې کلمې راوړل کېدای شي لکه:

---

[1] **د. ك. ا سكالوف، 1،س، صديتوف، 101 عبدالظهو روف.**

[2] **په پ تو ژبه ک كله هم (د (اضافت(د) حذفيإي او د توصيفى تركيب په دودهم را ي لكه: كابل پوهنتون، ميرويس ميدان، انار ل.**

د ملالۍ کمیس، د اجمل کوټه، زمونږ کتابونه، تورکمیس، لس تنه، څو تنه... او داسې نور. . . په پښتـو ژبـه کې د ځینـو ټاکلو او مشخـصو اضـافي او توصـیفي ترکیبونـو څخه پرتـه نـور ټـول ترکیبونه د ناټاکلو (غیر ثابتو) ترکیبونو له جملې څخه دي.

ج: - په پښتو ژبه کې زیات شمیر ترکیبونه شته چې د یوې معنا د پوره او بشپړې افادې د پاره په مقیده توګه استعمالیږي چې دغه ترکیبونه په جوړه تکراري... توګه مروج دي. دغـه ترکیبونـه د جوړښت له مخې په بشپړ او نا بشپړ (مکمل- نا مکمل) باندې ویشل کیږي.

په بشپړو او نابشپړو ترکیبونو کې یوه کلمه د بلې کلمې سره نـه تـابع کیـږي خو پـه تکـراري او جوړه توګه سره راځي. لکه: پـاك سـپیڅلی، مخـامخ، غرونـه غرونـه، ډول ډول، رنګ رنګ، خواږه خواږه، جوړه جوړه، نیغ نیغ، ژر ژر، من من، خروار خروار، سور سور.

نیمګړي یا نابشپړ مثالونه لکـه: چـاي مـای، ډوډۍ مـوډۍ، کارمـار، کـور ور، کډوډ، البتـه د پورتنیو ترکیبونو په باب بشپړ معلومات د لوی استاد پوهاند رشتین اثر وګوری[1]

څنګه چې دمخه مو اشاره کړې ده خپلواك (ازاد) ترکیبونه په اسمي او فعلي ډلو بانـدې ویـشل کیږي نو دلته دا هم زیاتو چې داسمي اوفعلي ترکیبونـو تـرمنځ زیـات تـوپیر هم لیـدل کیـږي، ځکه اسمي ترکیبو نه او فعلی ترکیبونه د معنا د بشپړ تابه یا نابشپړ تـا بـه لـه مخې سره تـوپیر لـري یـو اسمي ترکیب د جملې د مبتدا په حیث او فعلی ترکیـب د جملې د خبر پـه توګه راځي چې پـه دې برخه کې به په خپل ځای د اسمي او فعلي ترکیبونو (عبارت) مثالونه راوړل شي.

## د جملې او ترکیب (غونډ) ترمنځ توپیر:

د جملې او ترکیب تـرمنځ خـاص تـوپیر شـته ځکـه هغـه ځانګړتیـا چـې د جملې پـه جوړښت کې موجـوده ده، پـه ترکیـب کـې نـه لیدلـه کیـږي. د یـوې جملـې مبتـدا او یـا خبـر هـر یـو د ترکیبونـو (غونډونو) (اسمي- فعلي) څخه جوړیږي. د مثـال پـه توګـه. پـه بـشپړې او پـوره جملـې کـې مبتـداء او خبر او همدرانګه د هغوی متعلقات ځای لـري مګـر پـه ترکیـب کـې دغـه بـرخې نیمګـړې وي خـو پـه پښتـو ژبـه کـې هـر ډول کلمـې او داسـمي یـا اداتـي ترکیـب یـو لنډ (Utterance) عبـارت (جملـه تشکیلولای شـي. د لنډ عبـارت څخـه د ږومبـي یـا وروسـتي عبـارتونو لـه قـرینې څخـه ددغـه عبـارت مستقلوالی د عبارت له سر او اهنګ څخه معلومیږي لکه:

سبا؟، زما په کورکې؟، ای سړیه!

---

[1] **صدیق ا ر تین، پ تو اشتقاقونه او ترکیبونه، کابل** 1327 **لمریز کال.**

هو صاحبه!، بلی هو!، نه نه، (وا وا وا! او داسې نور ترکیبونه[1] مګر که چېرې دغه لاندنیو ترکیبونو ته نظرواچو، نو بیا د عبارت (لنډ عبارت) یا جملې په بڼه نه شي راتلای، خو د یو بشپړ او مکمل ترکیب (Phrase) حیثیت به ولري.

لکه: سور قلم، ښکلې نندار‌ه، ګران هېواد

که چېرې ووایو: (دا) سور قلم دی.

(دا) ښکلې ننداره ده. نو دا به ساده جملې وي. په دغه ډول ترکیبونو کې معمولاً کلمې یو له بلې سره په جنس، عدد، حالت کې ګرامري مطابقت څرګندوي. په پښتو ژبه کې د کلمو او عبارتونو ترتیب او ګرامري مطابقت ضروري دی.

لکه : د سیند څپه، داسونو شنډا، مست هاتیان، شنه زمریان، لوی غر

## په پښتو ژبه کې د ترکیب (غونډ) ډولونه:

په پښتو ژبه کې ترکیبونه په دوو ډلو سره (اسمي اوفعلي) بېلیږي چې بیا هره ډله یې په خپل وار سره په جلا ډلګیو ویشل کیږي.

## لومړی: اسمي ترکیبونه (Phrases) او ډولونه یې:

اسمي ترکیبونه هغه دي چې د ترکیب اصلي او اساسي برخه (اجزا) یې نوم (اسم). وي او دغه اسمي ترکیبونه په جمله کې د مبتدا (مسندالیه) او په اسمي جمله کې د خبر (مسند) په برخه کې راځي.

## اسمي ترکیبونه په لاندې ډلګیو ویشل کیږي:

## اضافي ترکیب:

دا هغه ډول ترکیبونه دي چې د یو اسم نسبت یو بل اسم یا ضمیر ته شوی وي یا په بله وینا سره که چېرې دوه نومونه د (اضافت (د) د مالکیت مقید مورفیم په واسطه له یو بل سره ارتباط پیدا کړي نو یو اضافي ترکیب لاس ته راځي[2].

د پښتو ژبې په اضافي ترکیبونو کې معمولاً یونوم مضاف الیه او بل نوم د مضاف په توګه وي چې مضاف د مضاف الیه څخه وروسته راځي.

---

[1] **هر برت پنزل، دپ  تو  رامر، کابل** 1340 (194) **مخ.**

[2] **محمد رحیم الهام، روش جدید در تحقیق د ستور زبان دري، کابل** 1349، (150) **مخ.**

## په پښتو ژبه کې اضافي ترکیبونه په لاندې توګه جوړیږي:

(د) د اضافت توری + نوم + نوم

د + مضاف الیه + مضاف

بیلګه: د ننګرهار ولایت، د پښتو نخوا غرونه، د پوهنتون کتابتون، د خوشحال خان د ستار نامه، د کابل ښار.

الف: اضافي ترکیب (عبارت) د معنا له مخې د لاندینیو مقصدونو لپاره راځي.

1- د ملکیت یا نسبت او قرابت معنا ځرګندوي لکه:

د پوهنځي محصلین،د افغانستان خلك، د زمرك کتاب، د ملالۍ کخوړه، د ځلمي ورور.

2- د اختصاص په مفهوم سره:

د بڼ ګلونه، د کابل ښار، د کابل منې، د ښار و ځاله، د جرګو وطن، د زمریو کور، د قبایلو جرګه، د مشرانو جرګه.

3- د بیان او وضاحت په معنا :

د زرو ګوته، د خاورو کنډولی، د اخترو ورځ، د سپوږمۍ شپه.

4- د تشبیه په مقصد:

د سترګو تور، دبېلتون اور، د ښو غشی، د مینې اور، د لستوني مار، د انځرګل، د فکر تال، د عقل لاس.

5- د ظرفیت په معنا : داوبو جام، د غوړو ټیم، د چایو ډبلی، د اوبو ګیلاس، دوینو جام، د میو جام.

6- د وړتوب په مفهوم:

د لیدنې وړ، د مرکې وړ، د دوستۍ وړ، د خوړ لومنه، د وژلو سړی، د دوستۍ خلك، د اشنایۍ وړ، دویلو خبره.

ب: د جوړښت له مخې اسمي ترکیبونه:

نومیز (اسمي) ترکیبونه په ساده او مرکب ډول دي:

الف: هغه ترکیبونه چې د دووساده و (مفرد) نومونو څخه جوړ شوي وي. لکه :

د+ نوم+ نوم:

د سیند غاړه، د پسرلي موسم، د علم رڼا ، د انصاف تله، د نارنج مېله، د پسرلي وږمه، د انارګل.

ب: هغه ترکیبونه چې لومړی اسم (مضاف الیه) یې یو مفرد اسم او دویم اسم (مضاف) یې دجمع عدد نوم وي:

د + اسم (مفرد) + اسم (جمع)

د ننګرهار باغونه، د نارنج ګلونه، د باغ ګلونه، د بڼ چوڼې، د هوا مرغان د داور تورې د اور لمبې.

ج: هغه ترکیبونه چې لومړی اسم (مضاف الیه) د جمع عدد او دویم نوم (مضاف) یې مفرد نوم وي:

د + (جمع عدد) نوم + مفرد (اسم).

د غرونو هوسۍ، د ستورو رڼا ، د ګلانو ښکلا، د تورو بریښنا ، د اسونو شڼا .

د: اوس به دلته مضاف الیه او مضاف دواړه د جمع عدد نو مونه وي:

د+ جمع عدد نوم + جمع عدد نوم.

د خلکو ارزګاني، د بورګانو اوازونه، د خاټولو جنډي. یا مضاف الیه مرکب نوم او مضاف ساده (مفرد) نوم وي.

د قصه خانۍ بازار، د کابل پوهنتون محصل، د پښتو ټولنې ودانۍ

هـ: مضاف الیه (مفرد نوم) او مضاف صفت وي.

د + (مفرد) نوم + صفت: دروغتون ناروغ، د لیونتون لیونی، د زماني پوه. د کور مشر، د زماني هوښیار.

و: هغه ترکیبونه چې مضاف الیه د جمع عدد نوم او مضاف یې اسم معنا وي لکه:

د زړ ورو خپلوي، دنا اهلو دوستي، د خلکو اشنایي.

ز- مضاف الیه (اسم) (مفرد ، جمع) او مضاف فعلي صفت وي:

د + نوم (مفرد — جمع) + فاعلی صفت:

د پسرلي ښکلوونکي، د مجلې چلوونکی، د مجلې چلوونکي، د مجلو چلوونکي، د جریدو خپرونکي.

د + نوم (مفرد) + مفعولي صفت:

د زماني رټلی، د خلکو ځپلی.

ح: مضاف الیه د توصیفی ترکیب مفرد په توګه او مضاف د مفرد نوم په توګه راغلی وي.

د + توصیفی ترکیب (مفرد) + (مفرد) نوم.

د نوي ښار جمات، دسره قلم قیمت، د نوي کال ورځ، د لوی خدای کلام.

ط: مضاف الیه د توصیفی ترکیب (جمع( او مضاف د مفرد نوم وي.

د توصیفی ترکیب (جمع) + (مفرد) نوم

د لویو ښارونو اوسیدونکی، د رڼا ورځو غل.

د ژیړو ګلو باغ، د تورو سترګو رنګ.

ك: مضاف الیه توصیفی ترکیب (جمع) او مضاف هم دجمع عدد نوم وي.

د تور و غرونو لیوان، د سرو انارو باغونه (ونې). د لویو غرونو زمریان، د شنوونو توتیان.

ل: هغه ترکیبونه چې مضاف الیه مفرد اسم او مضاف یې توصیفی ترکیب وي.

د + اسم + توصیفی ترکیب (مفرد).

مفرد : د زماني هوښیار سړی، د قوم سپین ږیری، د پسرلي خوږه ورمه.

د + اسم (مفرد) + توصیفی ترکیب (جمع عدد).

دغم درانه خوبونه، د خوشحالۍ لنډ وختونه، د ملګرتوب ښې ورځې، د ژمي اوږدې شپې، د ژمي لنډې ورځې.

م: مضاف الیه د جمع عدد نوم او مضاف توصیفی ترکیب (مفرد) (جمع)

د + جمع عدد د نوم + توصیفی ترکیب (مفرد)،

د + جمع عدد نوم + توصیفی ترکیب (جمع).

د اوبو ډك جام یا د اوبو ډك جامونه

د شودو غټ پیروی- د کوچیانو اوږده کتارونه

د مستو ډکه کټوه- د سیندونو مستې ځپې، د بوراګانو سوې نغمې.

ن: په دې ډول ترکیب کې مضاف الیه فعلي صفت (فاعلي، مفعولي) او مضاف توصیفي ترکیب، عددي، اشاري... ترکیبونه وي.

الف: د + فعلي صفت (فاعلی مفرد) + توصیفي ترکیب.

| جمع | مفرد |
| --- | --- |
| د ليکونکو ښې مقالې | د ليکونکي ښه مقاله |
| دپوهاندانو پاخه فکرونه | د پوهاند پوخ نظر |
| د څېړاندانو درنې وظيفې | د څېړاند علمي څېړنه |
| د څارندويانو درنې وظيفې | د څارندوی درنه وظيفه |
| د تللو هېريادونه | د تللي هېرياد |

2- د + فعلي صفت (مفعولي) + توصيفي ترکيب.

د ېبيدلي ژيړه څېره

دوهلي تيزه منډه.

درټل شوي ځوړند سر

ب: فعلی صفت + عددي صفت.

د + فعلی صفت + عددي صفت:

د ګنډونکي يو ماشين. د ښوونکي يو کتاب

د ځورول شوي يوه خبره. د پرزول شوي خړه څېره.

**جمع :**

د ګنډونکو درې ماشينونه

د ښوونکو لس کتابونه.

ج : د + نوم + اشاري ترکيب =

د ښوال دغه باغونه.

د وطن هغه دښتې.

د کلی وال هوغه ونې.

د + مضاف اليه (مفرد، جمع) نوم او مضاف عددي ترکيب وي:

1- د + نوم (مفرد) + عددي ترکيب:

د ژوند يوه ښکلا، د سريو ويښته، دونې يوه لښته، د کوټې څلور ديوالونه.

2- د + نوم (جمع) + عددي ترکيب:

د کورونو څلور ګوټونه، د لاسونو پنځه ګوتې، د ملګرو پنځه بکسونه.
3- بل داسې چې: د + عددي ترکيب + نوم (مفرد).
د يوې وني مڼه، د څلورو تنو خيال، د لسو تنو زور.
4- د + عددي ترکيب + نوم (جمع)
د څلورو تنو نظريې، د سلو تنو جرګې.
5- د + عددي ترکيب + عددي ترکيب:
د پنځو تنو پنځه برخې، ديوه کلي يو مشر، د يوه کلي يو سپين ږيري.
ح: مضاف اليه عددي ترکيب او مضاف توصيفي ترکيب راغلی وي. د يوه مين درمند زړه د يوې ونې لويه څانګه، د يوه کتاب لويه برخه.
اوس په دې برخه کې ګورو چې مضاف اليه توصيفي ترکيب او مضاف هم د توصيفي ترکيب په توګه راغلي وي.
د + توصيفی ترکيب + توصيفی ترکيب.
الف: د لوی خدای پاك کلام، د لوړ انسان لوړ فکر
ب: د لوړو انسانانو لوړ شخصيتونه
د غمجنوزړونو سوي اهونه.
د درندو خلکو درانه خو يونه.
بيا هغه ترکيبونه ګورو چې په پښتو ژبه کې هم زښت زيات مروج دي لکه:
مضاف اليه د عطف په صورت کې (عطفی ترکيب) او مضاف يې ساده نوم وي يا جمع وي.
د + مضاف اليه + مضاف:
د + عطفي ترکيب + (نوم):
د موسی خان او ګلمکۍ فلم، د دوست او دښمن مقابله.
دادم خان او درخانۍ داستان، دغم اوښادۍ وختونه (ورځې)
د نن او سبا فکر، د سبا او بېګا خواږه.
ددې نه پرته مضاف اليه کيدای شي چې ددوونه زيات نومونه، صفتونه، ضميرونه... د عطف په توګه راشي لکه: د کابل، کندهار، ننګرهار، ښارونه، دا څك، بريالي، زمرك او ځلمي دوستي.
بله دا چې مضاف اليه نوم (مفرد، جمع) وي او مضاف د عطف په صورت سره راغلی وي.

د + مضاف الیه + مضاف:

د + نوم (مفرد، جمع) + عطفی ترکیب:

د کندهار منې انګور او انار، دا څك بوتلونه کتابونه او قلم، د خلکو ارزوګانې او هیلې

د + مضاف الیه + مضاف په دې ترتیب سره چې:

(د + عطفي ترکیب + توصیفي ترکیب) وي.

د کابل او ننګرهار لویه لار، د سوز او ساز ډکې نغمې

د بلبلو او بورګانو سوې نغمې (لوړ اوازونه).

د شتمنو او دولتمنو بدنیتونه.

پاتې دې نه وي چې په اضافي ترکیب کې برسېره پـه نومـوړ و ترکیبونـو د پښتـو ژبې تکـراري جوړه، مترادف- مشابه او متضاد ترکیبونه هم د مضاف الیه او یا د مـضاف پـه توګـه راځـي، چـې د ټولو راوړنه دلته ډېر وخت غواړي، یوازې دغه څو مثالونه یې د بېلګې په توګه راوړو:

1- د دوستانو غرونه غرونه سلامونه، د دوستانو ځولۍ ځولۍ سلامونه.

2- د لویې ونې خواره واره ښاخونه، دغتې ونې خورې ورې څانګې.

3- د زرکو سترګو تیز تیز کاته، د هو سیو سترګو ترنده ترنده کاته.

4- د پېغلو لنډ لنډ قدمونه.

5- د لسو لسو تنو ډلې.

6- د تك راتګ لار، د خوا په خوا مرکه، د شورماشور خبرې.

یا د ملګري تګ راتګ، د خلکو شورماشور.

یادونه:

په اضافي ترکیبونو کې که چېرې د یوه نوم (مضاف الیه) پر ځای ضـمیر راشـي نـو پـه دغـه ډول ترکیب کې هم د اضافت (د): مضاف الیه + مضاف خپل دریځ ثابت ساتي لکه:

(د) زمـا کتـاب، زمونـږ هیـواد، سـتا خوښـه، ستاسـي هیلـه، دده ورور، ددې کتابچـه، ددوی خبره، دهغه (هغې) ملګرې، د هغـوي.. چې پـه دغـو ترکیبونـو کې هـم د مفرد او جمـع صـورتونه را تلای شي. په دغه ډول ترکیب کې هم مضاف الیه تر مضاف د مخه راځي.

په پښتو ژبه کې یوازې په هغه صورت کې مضاف تر مضاف الیه د مخه راتلای شي چې،

1- مضاف الیه ناخپلواك (اداتي) ضمیرونه وي.

2- کله نا کله د بدل په توګه هم مضاف د مخه راځي البته پـه شعر او ځینو ادبي هنـري لیکنـو کې دغه طریقه دود لري.

لکه: ونه د چنار، پانه دګور ګورې، لښتنه دونې، سر د زړه.

## توصیفي ترکیب:

داړ له ترکیبونه هم داسمي (نومیز) ترکیبونو (عبارت، غونډ) په ډلـه کې راغلي دي، چې دغـه ترکیبونو ته په عامه توګه مرکب صفتونه[1] وایي البته په هغه صورت کې چې مرکب مفهوم ورسوي دغه ډول ترکیبونه (Phrases) د یو اسمي مرکز (زړي) سره د صفتي ډلې (کلمو) له ترکیـب څخه لاس ته راځي.

توصیفي ترکیبونه (غونډونه) هغه دي چې دیوه اسم (نوم) یا ضمیر حالت څرنګوالی د صفت په واسطه بیان او څرګند شي.

په پښتو ژبه کې توصیفي ترکیبونه د جوړښت له مخې په لاندې توګه جوړیږي.

د مثال په توګه:

(صـفت + اسـم)، (نـوم + نـوم)، (نـوم + صـفت)، (نـوم + قیـد)، (نـوم + فعلـی صـفت)، (صـفت + صفت).

ددغه ډول ترکیبونو بشپړ فهرست په لاندنیو ماخذونو کې لیدلی شو[2][3][4][5].

په پښتو ژبه کې صفت د نوم (مرکز، زړي) موصوف څخه دمخه راځي او د ګرامري قاعدې له مخې صفت د نوم موصوف تابع دی.

که چېرې (موصوف) د نارینه یا ښځینه مفرد یا جمع وي نـو صـفت ورسره هم پـه هماغـه ډول د عدد ، جنس، حالت له مخې سمون کوي[1].

---

[1] صدیق ا   ر  ـتین، د پـ  ـتو اشتقاقونه او ترکیبونه، کابل، 1327، (77) مخ.

[2] صدیق ا   ر  ـتین، د پـ  ـتو اشتقاقونه او ترکیبونه، کابل، 1327، (77-79) مخونه

[3] داکتر زرغونه، د پـ  ـتو اشتقاقونه او ترکیبونه، کابل پوهنتون، 1357 کال د پوهنـ  ـي درسي نوټ (52-54) مخونه.

[4] عظیم شاه خیال، پـ  ـتو صرف ونحو، پیـ  ـور 1942 ع کال.

[5] د ارمستر، ـ ـایـ ـر، مور  ـنسترن، تاریخ تلفظ و صرف پـ  ـتو لومؤی ـوك، کابل. 1356 ل کال.

لکه: نارینه (مفرد) ستړی هلك، سبزنی کال، لنډ فکر
نارینه جمع، ستړي هلکان، خواږه نثرونه.
ښځینه (مفرد): خوږه وږمه، تازه هوا.
ښځینه (جمع) خوږې نغمې، ترخې ورځې.
په پښتو ژبه کې توصیفي ترکیبونه په لاندې توګه ښودلی شو:
الف: صفت (مفرد) + نوم (مفرد)! لنډ فکر، اوږد تار، رڼا ورځ، لنډه ورځ، نوې مفکوره
ب: صفت (جمع) + نوم (جمع) لکه: زاړه خیالونه، تاوده سلامونه، کاږه ورمېږونه، لنډې ورځې، اوږدې شپې.
ج: ضمیر + صفت: هغه خوار، دغه بې وزلی، ته خوار، ته خواره، ځولیوني، څومره ډېر، څومره لوړ، څه ښکلی.
د: نسبتي صفت + نوم = توصیفي ترکیب.
کابلی سړی، ننګرهاري خلك، افغاني کلتور، ادبي جرګه، ملي پانګه، لاندینی پوړ، ننۍ ورځ، دولتي موسسه، خاورین کنډولی، وریښمین کالی، او بلن ماسته، خیرن کالي، زړ ور خلك، ګټه ورکار، شته من سړي، غیرتمن پښتون، کرکجن سړي، کبرجن سړي، تورځن سړي.
هـ: نسبتي عددي صفت + اسم.
شلیز نوټ، سلګون نوټ، لسیز نوټ، پنځوس ګون نوټ.
و: مجرد (معنا) نوم + نوم = ستوصیفی ترکیب:
توریالی سړی، توریالي جنګیالي خلك، فرهنګیالی خوشحال.
ز: فعلي صفت (فاعلی) + نوم = توصیفی ترکیب:
راغلی سړی، تللي وختونه، سوځونکی بم، تلونکې دوره، تلونی هلك، وتېندوی هلك، ګرځندوی موټر، خوځندوی (ځوځند) ماشوم.
ح: فعلي صفت (مفعولی) + نوم.
رټلی هلك، وهلی هلك، ځپلی هلك، رټل شوی هلك، وهل شوی ماشوم، ځورول شوي خلك.

---

**[1] یادونه: په ینو شریکو صفتونو ک ددغه قانون خه مستثني دي لکه : هو سا، ساده، قوي، أاأه، خپه (سؤي، ه).**

ط: اشاري ضمير + اسم[1]:

| | | | |
|---|---|---|---|
| 1- دا | دغه | هغه | ښار. |
| دا | دغه | هغه | جونکړه. |
| دا | دغه | هغه | وګړي |
| دا | دغه | هغه | ورځ |

2- استفهامي ضمير + نوم: کوم خلك، څه شيان، څو سړي، څومره کسان، څو تنه، څووم سړی.

په پورته مثالونو کې موولیدل چې صفت او موصوف د بسیطې او ساده کلمې څخه دي ولې پرته له دي څخه په پښتو ژبه کې ډېر داسې مثالونه وینو چې د ترکیب یوه برخه یې مرکب او بله یې ساده او یا برعکس وي او یا دواړه برخې یې مرکبې وي.

لکه: ډیرې خوږې منې، خورا ډېرې لنډې ورځې.

1- ډېر درانه او سپیڅلي خویونه.

مړ ژواندی سړی، روغ جوړ خلك، وچ کلك لرګی، سره سپینه څېره، خواره واره کالي، وړی تږی مسافر.

لنډ لنډ کميسونه، اوږده اوږده کالي، اته اته برخې.

2- شنه باغونه او چمنونه، شنې ونې او څانګې.

3- هغه یوه ښکلې نجلۍ، دغه یوښه پوخ مضمون.

علمي خپره شوې مقاله، دغه یوه خپره شوې علمي مقاله.

روښانه لیدله شوې میاشت، رټل شوي مظلوم خلك.

یو ډېر ښه اسان کار، دغه راغلي پښتنه مېلمنه پېغله.

---

په پ و ژبه ک د صفتونو د ينو ألو او د ينو ضميري صورتونو أولونه په کاره تو ه ر ند نه وي نو داسمي مرکز او د هغوي د متعلقو صفتونو په من ک کله دغه د اسم او صفت مطابقت کاره نه ر ندیإي لکه: نه خوار یا نه خواره، نه ساده، هغه ار، هغه جون ؤه! دغه کار، دغه پوهه . . .

[1] که د اشاري ضمير ونو سره د مرجع (نوم) يادونه شوي وي اشاري صفت بيا توصيفي ترکيب دی.

**عـددي ترکيبونـه:** چې د عـدد (شـمېر) او نـوم (معـدود) څخـه رغيـدلي وي. پـه دې ترکيبونو کې بيا هم نوم د ترکيب مرکزي (زړی) وي. په پښتـو ژبـه کې عـدد هـم تـر خپـل معدود د مخه راځي او د عدد، جنس په لحاظ د معدود تابع وي[1].

په لاندې توګه عددي ترکيبونه دي:

1- عدد + نوم : دوه کتابونه، دوې ښځې، يو خبر، يوه ماڼۍ، درې کتابونه، درې کتابچې.

2- عدد + ضمير : يو هغه، يوزه، دوه دوي، دوه مونږ، دوه تاسې، دوه هغوي، يوته، يـوزه، يـو څوك، يو چا.

3- ضمير + عدد: هغه دوه، دغه يو، دغه لس. کوم يو، کومه يوه هريو، هره ګړۍ، هر ساعت.

4- ترتيبي عدد + اسم: پنځم سړی، لسم ټولګی، شلمه پېړۍ، پنځمه برخه.

5- داسمونو او عددونو ترمنځ کله کله قيـدي (تميـزي) کلمـې هـم راوړل کيـږي: دوه تنـه سړي، ديرش کسه ميلمانه، څلور سره غويان، دوه دانې قلمونه، څلور ټوکه کتابونه، يو تختـه کاغذ، دوه تانه رخت، يوه ټوټه ځمکه، يوه پايه الماری، څلور جوړې بوټان.

6- د مطلقو عددونو ترکيب د (پر) پريدلوك (سرينه) سره:

دوه پرپنځه، درې پرلس، يوه پر څلور، يو پر څلور.

7- مطلق عدد + رتبي عدد + نوم : دوه پنځمه برخه (5/2) دوه شلمه برخه (20/2)[2].

8- په مرکبه توګه: عدد + توصيفي ترکيب (غونډ):

يوه ښکلې مرغی دوې هوښيارې نجونې، درې غټې چرګې، لـس تنـه پاخـه مـشران، يوه ډېره لويه درنه جرګه.

## قيدي ترکيبونه:

د نوميزو ترکيبونو په ډله کې قيدونه هم ستره برخه لري، چې ددغـو ترکيبونـو اصـلي او اساسـي توکي قيدونه دي او د جلا او بېلا بېلو معناګانو په غرض ځيني نور مورفيمونه (تاکيد، عدد، نوم،

---

[1] په پ تو ژبه ک عدد د يو خه وروسته د جمع په تو ه راوؤل کيإي او دجنس په لحاظ (يـو او دوه) تـصريفيإي م ر ددرې شمير خه وروسته د ولو جنسونو له پاره يو أول را ي.

[2] د زياتو معلوماتو د پاره و وري:

د پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر. لومؤی وك. کابل. 1327 لمريز کال (121) مخ.

سرينه او پسينه) ورسره يو ځاى كيږي او ټول تركيب د قيد په توګه په جمله كې استعماليږي. د پښتو ژبې قيدي تركيبونه (Adverbial) په لاندې توګه لنډ لنډ راوړل كيږي.

**الف**: قيد + قيد = قيدي غونډ (تركيب)

لره بره، وړاندې وروسته، هلته دلته، اخوا ديخوا. كښته پورته، لاندې باندې، اپلو دې پلو په تكراري توګه: اوس اوس، كله كله، ژر ژر. ورو ورو، چابك چابك، ګړندى ګړندى.

ب: نوم + نوم = قيدي غونډ.

اغزي اغزي، غرونه غرونه، كلي كلي، سيندونه سيندونه، پنډ پنډ ، ځولۍ ځولۍ، ډلې ډلې.

ج: صفت + صفت = قيدي غونډ:

پټ پټ، پوست پوست، لوى لوى، تود تود ، خوار خوار، شور شور، غټ غټ، غلى غلى، ګڼ ګڼ، وران وران، مات مات، ټوك ټوك.

د: عدد + عدد = قيدي غونډ.

پنځه پنځه، شل شل، لس لس،

هـ : عدد + عدد + نوم = قيدي تركيب (غونډ).

يو دوه ورځې، دوه درې ساعته، درې څلور كتابه، پنځه شپږ كاله.

عدد + اسم = قيدي تركيب (غونډ).

دوه ورځې، درې مياشتې، يوه ورځ، يو ځلي.

و: صفت + قيد = تركيب (غونډ).

ډېر نژدې، ډېر لرې = ښه كښته، ډېر ژر. ډېر لږ، لږ ورو، سپين سبا ، توره شپه

ز: ضمير + ضمير = قيدى تركيب.

څوك څوك، چا چا ، څه څه، كوم كوم.

ح: صفت + صفت:

ډير هوښيار، ښه غښتلى، توره خړه.

ط: ټاكلى ضمير + نوم:

هر ځاى، هر چېرته (مكاني قيد)

هر وخت، هر كله (دزماني قيد)

ي: سرینه + نوم = مکاني قیدي ترکیب.

هم هلته، هم دلته.

## ك: نوم + په + نوم = مکاني، زماني

ځای په ځای، کور په کور، کوڅه په کوڅه، کلي په کلي، وخت په وخت، کال په کال، میاشت په میاشت، ټك په ټك، ګړی په ګړی.

ل: صفت + په + صفت = حالتي قیدي ترکیب: پټ په پټه

(عدد + په + عدد): یو په یو. دوه په دوه.

م: نوم + تر + نوم = زماني قیدي ترکیب:

کال تر کاله، ساعت تر ساعته، ورځ تر ورځې

ن: قید + تر + قید:

ژر تر ژره، تل ترتله.

ق: صفت + تر + صفت : لرې تر لرې، ډیر تر ډیره.

ر: قید + تر + نا خپلواك ضمیر.

وروسته تردې یا تردې وروسته، پخوا تر دې، مخکې تردې.

ش: (سرینه) سر بل په + صفت + نوم (قید):

په ښه توګه، په ډېره بیړه

ت: (سرينه) سر بل په + نوم: په خندا، په ژړا، په مړانه، په تلوار، په منډه

ض: سربل په + نوم + نوم = قيدي ترکيب: په منډه منډه، په د انګو دانګو، په خندا خندا، په ژړا ژړا، په نارو نارو، په چيغو چيغو، په کړيکو کړيکو.

## تاکيدي ترکيبونه:

په پښتو ژبه کې تاکيدي ترکيبونه له دووهم اهنګه او هم معنا کلمو څخه جوړ شوي وي.

تاکيدي ترکيبونه په دوه ډوله دي:

الف: چې يو لفظ (کلمه) په ترکيب کې کټ مټ تکرار شوي وي. لکه پورتني ځيني مثالونه:

ب: چې يو لفظ په کې په لږ تغير سره تکرار شوي وي لکه: ټك ټوك، ډزډوز، ټيل ټال.

ج: چې په دوهمې کلمې کې داول توري په ځاي (م) يا (پ) يا (ب) يا (و) راوړل شوي وي لکه:

لرګي مرګي، ډوډوی موډی، اوبه موبه، غنم منم، زوږ پوږ، خړپړ، ژېړپيږ، کلك پلك، هك پك، سوړ پوړ، خيرې ويرې، کوږ وږ، خورور، ګډوډ، تور بور. د زياتو معلوماتو د پاره وګورئ[1][2][3].

# اداتي (ارتباطي) ترکيبونه (غونډونه)

اداتي ترکيبونه ځکه ورته وايو چې له ادواتو او اسمي مرکز څخه جوړ شوي وي. ددې ترکبيونو اسمي مرکز ضمير يا اسم، صفت او يا کوم بل هر ډول اسمي ترکيب وي. په دې ترکيبونو کې ادات هم له اسم[4] څخه وروسته او هم د مخه او هم داسمي مرکز په دواړو خواو وکې استعماليداى شي.

هغه ادات يا توري چې په يوې جملې يا يو ترکيب کې د کلمې يا له يوه نوم څخه د مخه يا وروسته راغلى وي د هغه ټاکلى حالت او دريځ څرګندوي.

دغه ادات چې د کلمو (نومونو) نه د مخه راشي سرينه او هغه چې وروسته راغلى وي پسينه ورته ويل کيږي.

---

(1) **ر  تين پوهاند صديق ا  . د پ  تو اشتقاقونو او ترکيبونه. کابل، 1327. لمريز کال**

(2) **ز. م. کالينينا، د پ  تو ژ  لغت پوهنه، مسکو، 1970. ع**

(3) **أاکتر زرغونه، د پ  تو اشتقاقونه او ترکيبونه، کابل، 1357، درسي لکچر نوټ.**

(4) **اسمی مرکز.**

د پښتو ژبې په زياتو ګرامرونو کې دغه ادات د جاره، جري توري[5][6] کلمات غير متغير[7] (د مفعول توري)[8] ادات يا توري[9][10][11] مغيره تورو په نامه راغلي دي.

په هر صورت څرګنده ده، چې دغه ادات (پيشينې، پسينې) په ځانګړې توګه کومه خاصه لغوي معنا نه لري ولې چې په جمله يا ترکيب کې د ناخپلواکو يا مرستيالو توکونو په توګه راځي چې معنايې د هماغو نومونو، فعلونو، قيدونو سره په استعمال کې څرګنديداې شي.

په اداتي ترکيبونو کې هره سرينه د خاص او ټاکلي معنا د څرګندولو له کبله خاصه او ځانګړې پسينه قبلوي ليکن په پښتو ژبه کې که سرينه له پسينو سره جوړه په ترکيبونو کې برخه اخلي نوپه زياتو مواردو کې يوازې سرينه او يا يوازې پسينه هم د مطلب ټکی بيانولی شي.

لکه: د (پرميز باندې پرځاي که وو ايو ميز باندې

1- د (ترکوره پورې پر ځاي که وو ايو (کوره پورې)

2- د (پر کتاب ٓباندې پر ځاي که وو ايو، پر کتاب.

3- مګر په دې لاندې مثالو کې ګورو چې يوازې سرينه راوړل کيږي، خو پسينه يې عامه نه بريښي لکه: په پښو لاړم.

په توره يې وواهه، په چاړه يې پرې کړ، په دعا ښه شو، په ژړاله کوره ووت.

4- مګر که ځينو مثالونو ته ځير شو نو بيا ګورو چې هلته دواړه توکونه (سرينه، پسينه) لازمي دي.

لکه: په کورکې، په منګي کې، په پوهه کې[1].

5- په ارتباطی حالت کې داسې هم ليدل کيږي، چې پسينه پرته له سرينې په ځانګړې توګه راځي.

کورته، هغه ته، غرمې ته، سباته، خواته، زړه ته...

---

[5] عظيم شاه (خيال) صرف و نحو پ تو، پيـ ور (238) مخ.

[6] محمد اعظم ايازي، قواعد پ تو، کابل 1318.

[7] جميزه د ارمستتر، تاريخ تلفظ و صرف پ تو، ترجمه 1356. ل

[8] محمد ل مومند، د پ تو ژب لياره، بلخ 1317 (309) مخ.

[9] پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر (1- وك) کابل، 1327 (30) مخ.

[10] پوهاند صديق ا ر تين ژب و دنه، کابل 1343 (6) مخ.

[11] هر برت پنزل، پ تو رامر، کابل، 1340 (18) مخ.

[1] دلته کله کيداي شي، چ سرينه حذف شي م ر پسينه به خامخا را ي لکه: کورک ، من ي ک ، پوهه ک .

اوس غواړو د پښتو ژبې د بېلا بېلو سرینو او پسینو مثالونه د ترکیبونو په توګه راوړو:
سرینه یې او پسینه یې ترکیبونه (غونډونه، عبارتونه):

**لومړي**: د (په) سره دغه لاندې پسینې راځي:

**الف**: د (په) سرینه او (کې) پسینه.

سرینه + اسمیه + پسینه.

1- په کورکې، په الماری کې، په افغانستان کې، په هیواد کې.

2- په میاشت کې، په دوبې کې، په شپه کې، په کال کې، په ورځ کې.

دلته ګورو چې (په، کې) د مربوطه نوم ظرفي حالت ښي (مکاني، زماني) حالت څرګندوي.

سربېره په ظرفیت د شمولیت معنا هم لري لکه:

زه په کې نه یم: یازه په دې خبره کې نه یم. په دې برخه کې پوهاند ربنتـین داسې نظر څرګند کړی دی.

د ظرفیت ادات (په،کې) که د ظرف مکان او ظرف زمان سره استعمال شي حقیقي ظرفیت افاده کوي او که د نورو اسمونو سره راوړل شي غیر حقیقي ظرفیت ښکاره کوي لکه:

1- سلیم په کوټې کې دی.
2- په اوړي کې ګرمي ده.
3- په سلیم کې دروغ نشته.
4- حمید په کارکی مړنی دی.
5- په منډه کې تېزدی.
6- په پوهه کې زیات دی.
7- په لوستلو کې مړنی دی[1].

**ب**: د (په) سرینه او (پورې) پسینه ورپورې پیوستون ښي.

سرینه + اسمیه + پسینه: په ځان پورې، په زړه پورې، په خوا پورې

سرینه + ضمیر + پسینه:

په تاپورې، په چاپورې، په هغه پورې، په مونږ پورې.

دلته ګورو چې الحاقیه (پیوستون) حالت څرګندوي.

**ج**: د (په) سرینه او (سره) پسینه.

(1) دغه ترکیب داله توب یادالې حالت ښیي.

---

[1] **پوهاند صدیق ا   ر  نتین. پ   تو  رامر** 2 **وك، کابل،** 1359 **نا چاپ.** 1370 **لم**

په + اسميه + سره

په زور سره، په خوښۍ سره، په چړې سره

(2) (په) سرينه او باندې پسينه.

دغه هم دالې حالت څرګندوي. لکه: په چاړه باندې، په تبر باندې او د (باندې) پسينه د (په) سرينې سره د پښتو ژبې په شرقي لهجو کې راځي ولې که عامې او اصلي محاورې ته ځير شو دلته د ډيرو مثالونو څخه جوتيږي چې د (په) سرينه غبرلـه پسينو (سره، باندې) څخه دالـې حالت څرګندوي لکه:

په خوښه، په (په بياتي) په توري، په قلم، په پښو، په دستمال، په چاکو، په ټوپك، په لرګي.

اوس به دغه مثالونه په جملو کې وګورو:

په خوښه لاړشه. په بياتي يې پرې کړه. په توره يې وواهه،

په پښو ولاړم، په قلم يې وليکه، په دستمال يې وچ کړه.

په چاکويې پرې کړه، په تور ټوپك ويشتلی راشې، په لرکي يې سرمات کړ.

(3) د (په) سرينه د نوم سره د قيد معنا ورکوي:

په منډه، په ژړا، په نڅا، په بيړه، په تلوار، په زوره.

د (په) او (پسې):

نوموړې (سرينه او پسينه) د پرله پسې والي معنا څرګندوي:

(په) + اسيمه (ضمير) + پسې:

په ملالۍ پسې، په او بوپسې، په دوبي پسې، په ګرمۍ پسې، په غم پسې، په شوي کارپسې.

په ما پسې، په هغه پسې، په ده پسې، په تاپسي[1].

دويم: د (پر= په) پيشنه او (باندې) پسينه، استعلايي ادات دي چې معمولاً د پورته معنا لري.

د (پر = په) سرينې په ډېرو ځايونو کې د يوه مفهوم دپاره راځي، که څه هم په ځينو لهجو (غربي) کې د (پر اوپه) د استعمال موارد بيل دي، ولې د پښتو ژبې په نورو اکثرو لهجو کې (پر=په) د استعلايي اداتو په توګه استعماليږي البته د قرينې او د جملې د محتوا څخه معنا لاس ته راتلای شي.

د (پر، په) سرينه د باندې پسينې سره په لاندې توګه ترکيب جوړ وي.

---

[1] **په دغو مثالونو ک    د (په) سرينه حذفيداى شي ول    د (پس    ) پسينه به خامخا وي.**

لکه پر دښمن باندې، پر سرحد باندې، پر لارې باندې تك راتګ، پر کتاب باندې، پر ځمکه باندې، پر زړه باندې.

ولی په دغو مثالونو کې ګورو چې د (باندې) پسینه زیاتره غورځیږي او د (پر=په)سرینه پرته له پسینې (باندې) څخه هم په دغه مفهوم سره راوړل کیږي. لکه: (سرینه + اسمیه) پر دښمن یې یرغل وکړ. پر اوږو باردی، پر کتاب پروت دی، په پرمیز پروت دی، اپردیوال ځوړند دی، پر زړه یې تیاره ده، په زړه یو څه پر خوله بله.

کله داسې هم وي چې اسمیه + پسینه راځي په دې معنا چې د (پر) سرینه حذفیږي (غورځي) یوازې (باندې) پسینه ورسره راځي لکه: میز باندې، بام باندې، کوټې باندې، الماری بآندې، زړه باندې، سرباندې، ده بآندې.

درېیم: د (تر) سرینه او (لاندې) پسینه:

(تر- لاندې) استیلایي حالت ښیي یعنی د لاندې معنا ورکوي چې دغه حالت کې د لاندې پسینه هیڅکله نه غورځیږي مګر د (تر) سرینه که رانه وړ له شي خو خپله معنا له لاسه نه ورکوي. اصلی صورت یې داسې دی:

الف: پېشینه + اسمیه + پسینه.

ترکوټې لاندې، ترمیز لاندې، تر اوبو لاندې، چې لاس لاندې، کوټې لاندې، میز لاندې، اوبو لاندې هم راځي.

ب: (تر، پورې، ان) چې دغه ادات اتصالي حالت ښیي.

همدارنګه نوموړي سرینې او پسینې ته د انتها یا (تم ځای) ادات هم وایي چې د یو فعل د اظهار ختم انتها او انجام ښیي.

ترکیب یې داسې دی: تر + اسیمه + پورې:

ترکابله پورې، تر کوره پورې، تر مازیګره پورې، تر غرمې پورې، تر اوسه پورې، ترماپورې.

په دغو مثالونو کې مکاني او زماني څرګندونه کیږي.

کله هم (تر) او (پورې) په جلا توګه هم راوړل کیږي خو په معنا کې کومه نیمګړتیا نه راځي. کوره پورې، کابله پورې، غرمې پورې، ماښامه پورې، یا تر بازاره، تر کوره، تر کابله، تر غرمې، ترماښامه او داسې نور...

ج: (تر) د وروسته یا راوروسته (د مخه) قید سره:

تر + اسميه + وروسته

تر غرمې وروسته، تردې وروسته، ترما وروسته، تر مارا وروسته،

د : (تر) د (ځينې، نه) سره:

دغه ادات د مقايسې مطلب څرګندوي: ترتاځينې، ترتانه، او يا خوپرته له پسينې راځي لکه:

ترتا، داکور تر هغه ښه دی، دی تر هغه مشر دی.

دلته (تر) د (له) معنی هم ورکوي[1] [2].

هـ: تر يوازې د سرينې په توګه هم راځي: تر ټولو مشر، ترما ښامه، ترګريوانه، ترستونې.

څلورم: د (له) سرينه (پېشينه) د لاندنيو پسينو سره راتلای شي:

الف: (له) د (څخه، نه، ځنې) سره ادات ابتدادې چې پيل ځای يامنشايې حالت څرګندوي يعنی د يوه کار پيل او ابتداښيې.

1- له + اسميه + څخه 2- له + اسميه + نه 3- له + اسميه + ځينې.

1- له کور څخه، 2- له کورنه، 3- له کورځنې.

له بآزار څخه، له افغانستان نه، له بازار ځنې

له افغانستان څخه له، ننګرهارنه.

د (له) سرينه کله هم يوازې پرته له،(څخه، نه) پسينو څخه استعماليږي.

لکه: له کوره، له ښاره ووځه له نرخه مه وځه.

او يا بازار څخه، کور څخه، ميلې نه، لوبغالي نه. دلته بايد ووايو چې (نه، څخه) پسينو سره د (را- در، ور) ضميرونه راځي. لکه سليم رانه. خپه ولاړ. ټولې پيسې ورنه بې ځايه ولاړې[1].

الف: (له، څخه، نه) نسبي يا مقايسي (پرتليز) مطلب هم ورکوي.

له تا څخه، له تانه مشريم، له تا ځني وړاندې يم.

ب: (له) او (څخه، نه) سببي علتي حالت ښيي.

له ګرځيدو څخه ستړی شوم، له ګرځيدو نه ستړی شوم.

| 1 | 2 | 3 | 4 | |
|---|---|---|---|---|
| له اوريدو څخه | له اوريدونه | له اوريدو | اوريدونه | (څخه) |

---

[1] (تر) په اي (د) هم را ي او همدغه معنا ر ندوي لکه د کو لاندې د ميز لاندې، د اوبو لاندې.

[2] د تر په ای د (له) سرينه هم را ي لکه: تر تازه ه يم = له تازه ه يم.

[1] پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر 2 وك اوس چاپ کابل د پوهن وزارت، 1370 لمريز کال.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| له نول ثخه | له نول نه | له نوله | نول نه | (ثخه) |
| له غم ثخه | له غم نه | له غمه | غم نه | (ثخه) |
| 1 | 2 | 3 | 4 | |
| له ویرې ثخه | له ویرې نه | له ویرې | ویرې نه | (ثخه) |
| له لوږې ثخه | له لوږې نه | له لوږې | لوږې نه | (ثخه) |
| له ستړ یا ثخه | له ستړیانه | له ستړیا | ستړیانه | (ثخه) |

یادونه: پورتني مثالونه (1-2) د پیشینو او پسینو په مرسته بشپړ ترکیبونه دي. خو (3) پرته له پسینو ثخه او (4) بې له پیشینو ذکر شوي دي.

ج: (له) د (سره) قید سره راځي:

(سره) د معیت او ملګرتیا ادات ګڼل کیږي، چې د (له) او (د) سره یو ځای استعمالیږي.

پیشینه + اسمیه + پسینه:

له ځلمي سره — له خلکو سره — له دوي سره — له هغوی سره

له هر چا سره — له تولو سره — له هیواد والو سره.

په دغه ترکیب کې پیشینه حذفیدای شي لکه: خلکو سره ملګرتیا کوي. ملالۍ دوي سره روانه ده. ولې (سره) پسینه معمولا راوړل کیږي. که رانه وړل شي نو بیا دغه مطلب ورځني په لاس نه راځي. د (سره) توری که لاژم الاضافه وي د ضمیرونو او اسمونو سره اضافي حالت لري لکه دده قلم زما سره دی[1].

د: د (راهیسې، راسې) ادات دي چې اصلا د (له) سره یو ځای استعمالیږي چې زماني (مهالي) قید جوړوي. دغه ادات د وخت پیل او د یو فعل شروع څرګندوي لکه:

له پروسږکال راهیسې په تمه یم، — له ډیرو کالورا هیسې نه دي راغلي.

له پرونه راهیسې مانه دی لیدلی، — دی له بیګا راسې وږی دی.

او کله (راهیسې) یوازې هم راځي لکه: دی مې بیګا راسې (راهیسې) نه دی لیدلی.

هـ: د پرته پسینه ده چې د (له) سره راځي. د بېلوالي او استثنا معنا ورکوي.

لکه: له مباحثو پرته، له کوربنو پرته، له تاپرته.

---

[1] **پوهاند صدیق ا ر تین، پشتو رامر 2 وك، کابل** 1370 **لمریز کال.**

دغه ترکیب کله په مقلوب شکل هم راتلای شي: پرته له کور بنو، پرته له تا د (له تاغیر او غیر له تا) هم دغه مطلب لري.

پنځم: د (ته) پسینه ده، چې معمولاً پیشنه نه غواړي، که څه هم د پښتو ژبې په غربی (کندهارۍ) لهجه کې د (و) پیشینه استعمالیږي مګر د پښتو ژبې په نورو ټولو لهجو کې یوازې (ته) کارول کیږي. په ځینو لهجو کې، د (ته) په ځاي (له) یا (لره) هم راځي لکه:

هغه ته کتاب ورکړه. هغه له کتاب ورکړه.

خوازك (ته) مې کتاب ورکړ. کورته ځم. څه ته راغلی).

همدارنګه پوهاند رښتین په خپل اثر[2] کې د (ته، له، لره) ادات د مفعولیت ادات په نامه یاد کړي دي.

لکه: سلیم ته مې خپل قلم وبانښه، ماته وګوره، دا قلم واخله او هغه له ورکړه. یا دا قلم واخله او هغه لره یې یو سه (لره) په اشعار وکې زیات استعمالیږي.

د (ته) ادات که د مکاني او زماني نومونو په اخر کې راوړل شي د فعل انتها (پاي) ښیي.

لکه: زه غواړم چې نن جلال اباد ته ولاړ شم. دی ښوونځي ته تللی دی. پسرلي ته به راشي.

مني ته به یې بوځم. او کله (ته) د ظرفیت معنا ورکوي لکه:

سلیم د کټ سرته ناست دی او حمید یې پښوته[1].

دا هلك ډوډی ته ناست دی. غوړونه اوریدوله (ته) پیدا دي.

هر سړي پیدا دی خپل خپل کارلره کنه
سترګې چې پیدا دي خو دیدار لره کنه
زلفې چې ولول شي خو خپل یار لره کنه

همدارنګه (ته، له) توري د (دپاره، له پاره) په ځاي هم راځي لکه:

زه دا ټولې خوارۍ تاله کوم = (تاله پاره کوم).

زه دا ټولې خوارۍ تاته کوم = (تا لپاره کوم). (تا دپاره کرم)

---

[2] **پوهاند صدیق ا ر تین، پ تو رامر 2 وك، کابل چاپ** 1370ل.

[1] **پوهاند صدیق ا ر تین پ تو رامر** 2 **وك، کابل** 1359 **قلمي،** 1370 **لمریز کال.**

یادونه: کومه پیشینه چې د (ته) سره راځي هغه د (واو) وصلیه په نامه یادیږي او د غیر مستقیم مفعول څخه د مخه راځي او د مفعولیت معنا افاده کوي. خو زیاتره د (ته) پسینې سره استعمالیږي. لکه و ده ته ووایه چې راشي. وماته څه وایې.

مګر د پښتو ژبې په اشعارو کې د نوموړي مفهوم د پاره یوازې (و) پرته له پسینې هم استعمالیږي.

هرګوره چې ګورم و عالم وته حیران یم
پسینه خوله یې وما راکړ وی مې موړ شوم

شپږم: (د) د اضافت توری دی چې د نومونو، خپلواکو ضمیرونو څخه وړاندې راځي لکه: دوړمې قلم، د زرګې سترګې، د ما نظر، د تافکر، چې (زما) او (ستا) په دود زیات استعمالیږي.

(د) پیشینه پرېدلوګ دغو وروستیو معناګانو د پاره په کاریږي[2].

الف: د څیزیا یوشي تعلق او ملکیت دپاره: د کابل پوهنتون، د کابل ښار، د کبر جام.

ب: د تشبهه او مکاني اداتو سره د پیشینې په توګه:

1- د مارغوندې، د ګلانو په رنګك، د ملالۍ په څېر، د مثال په ډول.

2- د کور دننه، د کور د باندې.

اوم: همدرانګه (د) (له پاره) په ترکیب کې د مقصد او کړنې د ټاکلو له پاره راځي: د پلار د پاره – د هغه له پاره. یا ستا لپاره.

## دوهم: فعلی غونډونه (ترکیبونه) :

د نومیزو ترکیبونو په باب مو څه ناڅه یادونه وکړه اوس به د پښتو ژبې د فعلي ترکیبونو په باب یو څه رڼاواچو.

څنګه چې د پښتو ژبې د فعلونو برخه ډېره پېچلې ده نوځکه پراخه څېړنه هم غواړي. دلته مونږ نه غواړو یوازې په دې هکله ژوره او هر اړخیزه څېړنه وکړو ځکه یوازې د پښتو ژبې د فعلونو په برخه کې پوره یو بشپړ علمي اثر لیکل کیدای شي.

د څېړنې له مخې داسې ښکاره شوې، چې داسمي نحوي ترکیبونو او ډولونو په برخه کې ځینې لیکنې شته خو د فعلي ترکیبونو په هلکه کوم جلا اثر نه وینو. البته فعلی ترکیبونه د جملو د خبر

[2] داکتر زرغونه. زیور، د پ تو رامر لومړی برخه، کابل پوهنتون 1360 ل کال، (144-145) مخونه درسي لکچر نوټ ستتنر.

په برخه کې ښودل شوي او اشاره ورته شوې ده. ولې په ژبښودنو (ګرامرونو) کې د صرف په باب کې د **فعل** صرفي قاعدې د ټولو زمانو له مخې په ساده او مرکبډول راغلي دي. پـه بېلـو بېلـو ماخذونو کې دغه موضوع ليدلی شو.

او په همدې ترتيب د پوهاند رشتين د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه چې دپښتو ژبې د **لغت** پوهنې مشهور او علمي اثر دی. په دې اثر کې يوه برخه يې د مرکبو فعلونو تر عنوان لاندې راغلی او هم دارنګه د حاليه او ماضيه فعلونو د جوړولو د ترکيب صورتونه په پوره توګه څېړل شوي دي. وروسته تردې په کال 1340 د پنزل پښتوګرامر کې د فعلي ترکيبونو په باب نومورې داسې ليکلي دي:

د پښتو **فعل** له ادواتو سره ترکيبېږي او هغه ادوات دادي:

د **فعل** د ډول ځرګندونکي ادات: ضميري ادوات لکه: (مې، دې، يې، مو) او د نفی (نه) لـه دغـه راز ترکيبونو څخه دي.

الف: داسم + **فعل** څخه ترکيبونه چې په عين حال کې پوره جملې دي، تشکيلېږي دا ډول ادات+ **فعل**، ترکيبونه هغه وخت زيات استعمالیږي چې 1نور اسمي صورتونه په عبارت کې موجود نه وي په دې راز مواردو کې ادات په يوه ټاکلي ترتيب سره استعماليږي. ځرګندوونکي ادات يا د نورو هر ډول پسينو څخه او د مطلق **فعل** د تجزيه کيدونکو برخو څخه وروسته استعماليږي لکه:

وبه ګوري. را به ورم. ولاړ به شم. يو به سم.

ب: ضميري ادوات: په مرکبو ترکيبونو کې لـه (بـه) څخـه سمدسـتي وروسـته اسـتعماليږي لکـه:

بوبه مې ځي، تاسې به مو امتحان ته پريږدئ؟ هوپرې به مورږ دو، ومې ويل.

ج: منفی کوونکی (نه) ادات په ترکيبونو کې تر ټولو ادواتـو وروسـته راځـي او د منصرف **فعـل** د مادې په سرکې نښلي لکه: ونه رسيدم، بونه تی (بونه ته) رابه نه ورِی. رابه نه شي. و می نکړ.

وادې نه وريد ، وبه يې نه ترم، پرې به مونه ږدي- د زياتو **معلوماتو** د پاره وګوري[1].

د: همدارنګه د اسم **فعل** د ترکيبونو ډولونه هم پـه ګوتـه کـوي او مثالونـه يـې راوړي چـې دلتـه د کول او کيدل د فعلونو ترکيب د (نوميزو) اسمی نومونو سره ښودلي او هم يې د (يم) (وم) کـومکی

---

[1] **هرپرت پنزل، پ تو رامر، کابل** 1340 **(**202**) مخ،.**

فعلونـو ترکيـب د اقتـداري او تمنـايي فعلونـو صـورتونه د متعـدي مجهولـو فعلونـو ترکيبونـه د مثالونو سره راوړل شوي دي د زياتو معلوماتو دپاره وګوري[2].

په فعلی ترکيبونو کې اصلي او اساسي توکی فعل وی چې دغه ډول ترکيب معمولا په جملې کې د مسند (خبر) برخه جوړوي، دغه ترکيبونه په ځانګړي توګه د ګرامري مانا له مخې مانا هم څرګندوي او په ځانګړي توګه يوه جمله هم ګڼله کيدای شي. پښتو ژبه کې فعلی ترکيبونه په لاندې صورتونو سره جوړيږي:

1- اسم + د فعل نوم (مصدر)

الف: بی واسطې: کتاب لوستل، ارام لټول، ليك ليكل.

ب: ارتباطي صورت کې: (په لاره کې دريدل)، (کورته تلل)، (پرميز باندې ايښودل)، (د ملګرو سره ليدنه کول)، (د هنر په باب خبري کول).

2- مصدر + فعل = ترکيب: غوښتل کوم، ليدل کوي، کتـل کـوو، رتـل کـوي، جوړول يا سازول کوم.

3- د قيد + فعلي ترکيب: عادلانه چلند کول[1].

فعلي ترکيبونه تل د جملې د خبر (مسند) په برخې کې راځي يعنی د جملې خبر وي نو ځکه ورته فعلي ترکيب (غونډ) هم ويل کيږي. که چېرې دغه فعلي ترکيبونه په جمله کې د مسند اليه (مبتدا) سره رانه شي او په جلا توګه راوړل شي نو بيا هم يوه پوره او بشپړه معنا ترينه ترلاسه کيږي او په ځانګړي توګه جمله هم ده[2].

ځکه په ځينو ترکيبونو کې د فعل د ګرامري مشخصاتو له مخې د مبتداء يا فاعل دريځ څرګنديداي شي. د پښتو ژبې په جملو کې فعلي ترکيبونه (غونډونه Phrases) په لاندينيو شکلونو سره راځي.

1- نوم (اسمی ډله) + فعل = فعلی غونډ (ترکيب)

2- (فعلی نوم) + فعل = فعلی غونډ (ترکيب).

3- قيد + فعل = فعلی غونډ (ترکيب).

---

(2) **همدا اثر** (204-203) **مخونه.**

(1) **معاصره روسي ژبه مسکو، د لوؤ و تحصيلاتو مطبعه.** 1966 **(**288-287**) مخونه**

(2) **په پ تو ژبه ک يوازي ساده او يوستوي فعلونو ته هم جمله ويلي شو.**

1- الف: د نوم + فعل په ترکیبونو کې بشپړ فعلونه (لازمي- متعدي) فعلي ترکیبونه جوړوي لکه: نوم + بشپړ **فعل**: کتاب لولم. کور اخلم. ناري وهي. قید + بشپړ **فعل**: پاس خیژوم. لاندې کښته کوم. وړاندې بوځم.

1- ب: د نومونو، صفتونو، قیدونو، اعدادو فعلی صفاتو سره د (یم)،(وم)[3] کومکی فعلونو ترکیب:

## 1- نوم + کومکی فعل:

انسان یم، انسان یې، انسان یاست، سړي دي.

ښځه ده. خلك یو. خبر یاست. هلك دی. خلك وو.

2- صفت + کومکی فعل: جوړیم (وم)، ناروغه دی (و). ووړ دی (و) وړه ده (وه)، سپین دی (و)، سپینه ده (وه)، سپینې دي (وې).

3- قید + کومکی فعل: لرې یم (وم)، نژدې یم (وم)، پورته دی (و) جګه ده (وه).

4- عدد + کومکی فعل: یو دی (و)، یوه ده (وه)، دوه دي (وو)، دوې دي (وې)، څلور دي (وو)، څلور دي (وې).

لومړي دی (و)، شلم دی (و)، لومړۍ ده، شلمه (وه).

5- دیم، وم کومکی فعلونه د فعلي صفتونو سره په دغه لاندې توګه فعلي غونډ ونه (ترکیبونه) جوړ وي:

الف: راغلی، تللی، ګرځیدلی، پاڅیدلی، جوړ شوی، جوړ کړی (یم) (وم).

د مونث په صورت کې: راغلې، تللې، ګرځیدلې، پاڅیدلې، جوړه شوې، جوړه کړې (یم، یمه (وم، ومه) راځي.

او د جمع په صورت کې: راغلي، تللي، ګرځیدلي، پاڅیدلي (یو) (وو).

ب: مفرد ، راغلی، تللی، ګرځیدلي، پاڅیدلي (یې، وې).

جمع، راغلی، تللی، ګرځیدلي، پاڅیدلي (یاست، یئ، وئ)

ج: مفرد مذکر، تللی، راغلي، ګرځیدلی، پاڅیدلي (دی- و).

مفرد مونث- تللې، راغلې، راګرځیدلې، پاڅیدلې (ده) (وه).

---

[3] **د (یم) او (وم) کومکي فعلونه د غایب له پاره ب قاعدې صورتونه لري او په دریم شخص ک د جنس له مخ هم تغیر مومي.**

د: د دریم شخص د جمع صورتونه:
مذکر: راغلي ګرځیدلي، پاڅیدلي (دي) (وو).
مونث: راغلي. ګرځیدلي، پاڅیدلي (دي) (وې).
د متعدي فعلونو سره د کومکي فعلونو ترکیب: (وهلي دی (و) (رټل شوی دی (و).
په مجهول صورت کې: فعلي مجهول صفت + (یم) (وم) :
وهل شوی یم (وم)، وهلې شوې یم (وم).
د کول- کیدل فعلونو سره:
الف – اسم (نوم) + کول
متعدی فعل اوسنی زمانه: (پخلا کوم). (اشنا کوم)، (او به کوم)، (رڼا کوي)، (تیاره کوي)، کارکوي).
ب: مصدر (فعلی نوم) + کول: لیدل کوي، خوړل کوي، سازول کوي.
ج: فعلی نوم (حاصل مصدر) + فعل: لیدنه، کتنه کوي، (روزنه کوي)، (ښوونه کوم)، (څورونه کوي).
د: قید + کول: (نژدې کوم)، (وړاندې کوم)، (لرې کوم)، (پورته کوم)، (نژدې کاوه) (وړاندې کاوه)، (پورته کاوه).
2- قید + فعلی نوم + کول (فعل): (له ورایه لیدل کوي)، (په سترګو خوړل کوي).
هـ: عدد + کول: (یو کول)، (دوه کول)، (یو کوي)، (دوه کوي).
ترتیبي اعداد هم راځي: (لومړی کوي)، دریم کوو).
د کیدل کومکي فعل سره ترکیب:
لازمي فعل:
نوم + کیدل: (اشنا کیږي)، (رڼا کیږي)، (اشنا کیدم)، (رڼا کیدله).
صفت + کیدل: (لیونی کیږي)، (زړ ورکیږي)، (جوړ کیږي = جوړیږي).
قید + کیدل: (نژدې کیږي = کیده)، (تر شا کیږم = (کیدم).
عدد + کیدل: (یو کیږم)، یو کیږو)، (یو کیدو)، (دوه کیږي).
مصدر + کیدل: (کیندل کیږي)، ساتل کیږي)، (کیندل کیده)، ساتل کیده).

(فعلي نوم) حاصل مصدر + کېدل: (ښوونه کېږي)، (روزنه کېږي)، (پالنه کېږي)،(تولید نه کېږي).

د کړل او شول کومکي فعلونه: چې معمولاً د کېدل او کول استمراري (نابشپړ صورت) فعلونو پر ځای راځي او د (کړل او شول) صورتونه د فعل بشپړ (مطلق) صورتونه جوړ وي[1].

نوم + کړل: (رڼا کړم)، (اوبه کړم)، (ویښ کړم).

صفت + کړل: جوړ کړم، (جوړ کړو)، (سپین کړه)، (پاك کړم)،(وران کړه)، (ویجاړ کړه)، (ودان کړه)، پخه کړه، لوند کړه.

قید + کړل: نژدې کړه، لرې کړه، پاتې کړه، پورته کړه، کښته کړ.

عدد + کړل: یوکړه، دوه کړه، یو کړم، دوه کړم.

مصدر + کړل: لیدل وکړه، پاڅول وکړه، جوړول وکړه.

حاصل مصدر + کړل: لیدنه وکړه، پاکونه وکړه، ساتنه وکړه.

د شول کومکي فعل سره ترکیب:

نوم + شول: اشنا شوم، جلا شوو، شاګرد شو، عسکر شو.

صفت + شول: جوړ شو، وران شو، روغ شو، زیات شو.

قید + شول: پورته شو، کښته شو، وړاندې شو، نژدې شو.

عدد+ شول: یو شو، سره یو شول، سره یوشئ، دویم شو، دریم شو.

مصدر + شول: په دغه صورت کې د (و) مختاړی هم ورزیاتیږي.

لیدل وشول، لیدل کتل وشو. او یا په دې توګه وپالل شو، وروزل شو[1].

حاصل مصدر (فعلی نوم) + شول: لیدنه وشوه، پاکونه وشوه، لوبونه وشوه.

په عمومي توګه د پښتو ژبې زیات شمیر فعلونه د یو (اسمي، نومیز) او کومکي فعل څخه مرکب وي، په دې توګه د تېرې زمانې او اوسنۍ زمانې د فعلونو بېلا بېلو صورتونو (استمراري، مطلق، امکاني، توانایي، تمنایي، ګوماني، احتمالي، ټینګاري) او نور د فعلي ترکیبونو (غونډونو) پوره بشپړ مثالونه دي چې د تېرې زمانې او اوسنۍ زمانې د ریښو څخه د کومکي

---

[1] **داکتر زرغونه زیور پ تو رامر (لومړي برخه)، کابل** 1360، (87-88) **مخونه ستتنر.**

[1] **په هغو غونأونو ک چ د مصدر + (شول - کؤل) راغلی وي نو د کومکي فعل د جمع صورت خه (ل) حذفیږي یوازې د مصدر (ل) راوؤل کافی ل کیږي که که چ رې د کومکي فعل سره (ل) راوؤل شي نو بیا دوه (ل) ن په ن ه نه ل یږي، یعنی دغه مصلحتا غورزولی شي.**

فعلونو، ضميري ورو ستاړو (فعلي خاتمو) او فعلونو په مرسته جوړېږي چې دغه بیا په جملو کې د فعلي غونډ یا ترکیب په نوم یادیږي.

څنګه چې په دې برخه کې د پښتو ژبې ټول فعلي جوړښتونه (ساده، مرکب)، (فعلي، اسمي) شاملېږي او د پښتو ژبې د فعلونو مارفولوژيکي (صرفي) برخې په باب پوره ډېرې ليکنې شوي دي په دې برخه کې د پښتو ژبې ګرامرونه او په خاصه توګه د لوی استاد پوهاند رشتين پښتو ګرامر لومړي او دويم ټوك کې پوره څېړنه او کافي معلومات شته.

## اصطلاحات (فرازيالوژيکي واحدونه)

اصطلاحي واحدونه هغه تعبيرونه دي چې هر ملت او اولس يې د خپل ژوندانه په چاپيريال کې د خپلو عنعنو، اخلاقو، روحياتو په چوکاټ او چاپيريال کې په خپله ژبه کې رامنځ ته کوي. دغه واحدونه نه يوازې په خبرواترو کې استعمالېږي بلکې په ليکلي اثرونو کې هم ستره برخه لري اصطلاحات که له يوې خوانه د ژبې دلغوي پانګې بشپړونکې برخه ده نو له بله پلوه يو ادبي خونداو رنګ هم لري.

اصطلاحات (Idiom) کوم خاص سبك پورې تړلي نه وي، بلکې د څو سبکونو ترمنځه شريك واحدونه ګڼل کيږي.

په ژبه کې دغه ډول ترکيبونه ځانته جلا او بېل بېل خصوصيات لري، په دې معنا چې نحوي ترکيبونه (Phrases) او ژبني اصطلاحات (فرازيالوجيکي واحدونه) يو تر بله ډېر توپير لري. د نحوي ترکيبونو (غونډونو) په باب مو د مخه څه ناڅه اشاره کړې ده. اوس به وګورو چې دغه ژبنی اصطلاحات (Idiom) برسېره پردې چې په ژبه کې د معنوي (سيمانتيکي) موضوع له پلوه تربحث او غور لاندې نيول کيږي نو په نحوي لحاظ د جوړښت له مخه څه ډول ترکيبونه دي او په ژبه کې څه ارزښت لري؟ (اصطلاحات) دغه ډول ژبني ترکيبونه د ژبې خاص عنصر او ژبني خاص ډول څرګندونو ته ويل کيږي[1] چې د زماني په اوږدو کې د خلکو له خوامنځ ته راغلي او په ژبه کې ثابت لغوي ترکيبونه (غونډونه) دي، ددغو ترکيبونو اجزاوې دومره ثابتې اوټينګې اړيکې سره لري چې بېلول يې ګران کار دی.

---

[1] ژبني اصطلاحاتو په نامه يادېږي.

اصطلاحات سمدلاسه د خبرو کولو په وخت کې نوي نه جوړېږي چې د کوم ټاکلي مطلب د ښکاره کولو د پاره ورځني کاروا‌خیستل شي، بلکې په جوړ شوي ډول د ژبې د ویونکو په حافظه کې ساتل کیږي او هر کله د ضرورت په وخت کې د تیار جوړ شوي لغوي ترکیب (غونډ) په ډول د مطلب د روښانولو د پاره ورځني کار اخیستل کیږي[2].

دغه اصطلاحات ثابت او ټاکلي دي پرته له تصرف کولو څخه د ضرورت په وخت کې د جوړ (تیار) شوي غونډ (ترکیب) په توګه کارول کیږي[3] چې مجازي او کنایي معنا ځرګندوي. پخپله دغه ډول (غونډ) نیغه (مستقیمه) معنا نه ورکوي لکه: لور په لوټه تېره کول. ددغه ترکیب، معنا په مستقیمه توګه نه ځرګندیږي مګر په دوهمه مجازي معنا سره د چل ول کولو یا فریب او غولولو او وخت تیرولو په معنا راځي.

بل مثال: اوښ په بده منډل، لوی لاس لرل. په همدې توګه ډېر مثالونه لرو، چې د پښتو ژبې لغوي پانګه زیاته شتمنه او بدایه ده، چې راټول او راغونډول یې ډېر زیاد او کار غواړي.

یادونه: ایډیوم د معنا او سیمانتیك له نظره د نحوي پوهې په چوکاټ کې نه څېړل کېږي، بلکې د ژبپوهنې یوه بېله ځانګه ده چې دغه ډول اصطلاحات څېړي. (فرازیالوژی) (اصطلاح پوهنه) د ژبپوهنې د یوې ځانګې په توګه او هم د ژبپوهنې د همدغې ځانګې د څېړلو د موضوع په حیث پېژندل شوې. د څېړلو دغې موضوع ته فرازیالوګیزم هم ویل شوی دی چې په تېرو وختونو کې د ایډیوم په نامه یاده شوې ده [1]دغه ځانګه د ژبې د لغتونو لغوي، معنوی ترکیبونه څېړي[2].

فرازیالوژی د یونانی ژبې د Phraes او Logos څخه منځته راغلي، نو (Phrasis) د ځرګندونې معنا ورکوي او Logos د پوهنې په معنا[3] همدارنګه په دغه باب ډېرو ژبپوهانو ځرګندونې کړې دي:

الف: فرازیالوژي په ژبه کې د ژبې ثابتو ترکیبونو مجموعې (غونډ) ته ویل کیږي[4].

---

[2] داکتر زرغونه زیوره د پ تو اشتقاقونه او ترکیبونه درسي نوټ، کابل پوهنتون، 1357.

[3] ايي یادونه وکؤو چ په ژبه ک عادي ترکیبونه او (اصطلاحات) سره أ نه شي.

- د متلونو په یر تاریخی قدامت او لرغونتوب لري.

- ایأ یوم هم ورته ویله کیإي.

[1] داکتر دولت محمد، فرازیالوژی، کابل مجله، 1355. ل 3 ه (72) مخ.

[2] او. س اخمانوه، د ژبپوهن د اصطلاحاتو قاموس، مسکو، 1969ع. (540) مخ

[3] 1.1. ریفرماتسکی " د ژبپوهنی مقدمه، مسکو، 1967 کال (70مخ).

ب: ثابت لغوي ترکیبونه فرازیا لوکیزم (فرازیالوجی) ګڼل کیږي[5].

ج: لغوي ثابت ترکیبونه چې په عنعنوي ډول تکرار شوي وي د فرازیالوګیزم په نوم یادیږي[6].

فرازیالوژیکي واحدونه چې د ایډیوم د اصطلاح په ځای راځي د معنا او جوړښت له مخه دغه لاندنۍ نښې لري.

1- ثابت داخلي ترکیب چې په ګډه یوه عمومي معنا او مفهوم څرګندوي. په اسمي او فعلي ترکیبونو کې یې اهمیت یو شان دی. فرازیالوژیکي فعلي ترکیبونه که څه هم د مرکبو فعلونو په څېر ښکاري ولې د مرکبو فعلونو څخه توپیر لري ځکه په ثابتو فعلي ترکیبونو کې ټول ترکیب یوه ګډه عمومي معنا ورکوي.

2- اصطلاحات د هغو توکونو څخه جوړیږي چې په دغه ثابت ترکیب کې خپله لغوي معنا له لاسه ورکوي. که چېرې ددغه ثابت ترکیب واحدونه (توکي) بېل بېل معنا شي نو خپله ټاکلې فرازیالوژیکي (اصطلاحي) معنا له لاسه ورکوي.

د بېلګې په توګه: د (لاروهل)، (ژبه کول)، (ژبه نیول)، (پښه نیول)، (غم خوړل) (زړه خوړل).

که ددغو مثالونو هره برخه یعنی هر یو توکی یې په جلا جلا توګه معنا کړو نو بیا هغه خاصه ټاکلې معنا او مطلب نه ورکوي. ځکه (لار وهل) کې د تګ معنا پرته ده په لغوی معنا سره لار اووهل کوم معنوي ارتباط سره نه لري. یا ژبه او کول سره جلا مفهومونه دي.

3- د ترکیبوونکو عناصرو څخه عمومي معنا لاس ته راځي یعنی ټول ترکیب د یوه واحد مفهوم په توګه معنا ورکوي.

4- په فرازیالوژیکی واحدونو کې ځینې محاورې او متلونه هم راتلای شي او همدارنګه د لیکوالو او پوهانو غوره ویناوې هم شاملې دي. لکه:

- پوره ورك دې کړه دوه کوره، د کبر کاسه نسکوره ده.

5- دغه ډول اصطلاحات (ترکیبونه) ټکي په ټکي نه ترجمه کیږي.

6- هره ژبه خاص او جلا اصطلاحات لري.

---

[4] ن. س. وال ینا، د. ز. روزنتینا، اوسنی روسی ژبه، مسکو، 1966.

[5] ا. ن. له وین د ژبپوهنی مقدمه (اساسات) مسکو، 1973. (69)مخ.

[6] یو، اس، ماسلوف، د ژبپوهنی مقدمه (اساسات) مسکو، 1975. (143) مخ.

7- فرازيالوژيکي واحد ونه د خپل معنوي خصوصيتونو له مخې د نورو ازادو ترکيبونو څخه توپير لري.
8- په ژبه کې دغه ترکيبونه ثابت وي. نوي نه جوړيږي خو داسې ځانګړتيا څرګندوي چې ټولنه يې په معنا باندې پوهيږي ځکه چې د ژبې د ويونکو له خوا منځ ته راغلي دي.
9- فرازيالوژيکي واحدونه د نورو ازادو لغتونو (ترکيبونو) په څېر د ژبې په لغوي سيستم کې چې موجود دی لغوي معنا ئيزاو ګرامري خاصيت هم لري:
10- ثابت ترکيبونه د مکملو جملو په څېر هم راځي لکه:

1- سترګې نه دي تيرې دي 2- ابی مړه شوه تبه يې وشليده.

د جوړښت له مخې کيدای شي دغه ترکيبونه ثابت نه وي خو د معنا له مخې يونه تجزيه کيدونکی ترکيب (مجموعه) ګڼله کيږي. يا په بله وينا سره يوه اصطلاح د کلمو داسې يوه مجموعه (ترکيب) ده چې په نحوي چاپيريال کې ببلا بيل لفظي خپلواکي ساتلی شي. البته هر ډول ګرامري تغيير په کې راتلای شي خو مشترکه ګډه معنا چې ددغه (غونډ) د اجزاو څخه لاس ته راځی نه تجزيه کيدونکې معنا به وي.

د مثال په توګه که مونږ د پښتو يو څو فرازيالوژيکي واحدونه په غور سره وڅېړونو دا به جوته شي چې ځيني دغه ډول ترکيبونه ثابت او مستقيمه معنا ورځني نه راوځي بلکې په مجازي توګه معنا ورکوي يعنی معنوي اړخ يې د ټول ترکيب نه لاس ته راغلی وي او دې سره ګرامري بڼې هم ثابتې وي لکه:

1- د خوشحالی نه په جامو کې نه ځايدل 2- د بوسولاندې اوبه تېرول 3- سپين سترګې کول، جګ لوکول. 5- په چپ اړخ پاڅيدل 6- اور په اوبوکی بلېدل.

د نومونو مثالونه:

(د اسمان کټ)، (د اسمان پړك)، (نوك او اوری)، (د لستوڼي مار). د پورتنيو مثالونو څخه څرګنديږي چې په دغو ترکيبونو کې لغوي او ګرامري تغييرنه پيښيږي. په دې معنا چې د يوې ټاکلې کلمې پرځای بله کلمه نه شي راتلای.

د مثال په توګه : لاس وينځل يوه اصطلاح ده، چې د انکار کولو او صرف نظر کولو په معنا ده او يا لاس ته راوستل هم بله اصطلاح ده که ددغو پر ځاي داسې وويل شي (لاسونه مينځل) يا

(لاسونوته راوستل) دلته ګورو چې فرازیالوژیکي معنا له لاسه ورکوي او بیا ازاد لغوي ترکیب جوړ وي. په پښتو ژبه کې داسې ترکیبونه چې د یو جز په ځای بله مترادفه کلمه راتلای شي او ددغه اصطلاح په معنا کې تغییرنه پېښوي یعنی لومړی برخه ثابته او دوهمه برخه کې بدلون راځی لکه، زړه اچـول او زړه غورځـول، خواسـړیدل خوایخیـدل، زړه ښویـدل، زړه غورځیـدل. زړه لویـدل، خواسړول، خوایخول، زړه تشول، زړه سړول یخول، همدارنګه سور شین کېدل یا سورشین اوښتـل، تور سپین کیدل. تور سپین او ښتل او داسې نور.

همدارنګه داسې اصطلاحات هم په پښتو ژبه کې شته چې د ترکیب دوهمه برخه یې ټاکلې او ثابته وي مګر لومړی برخه کې جلا مترادف الفاظ راغلی وي.

1- تندر پریوتل او ټکه پریوتل (2) قول کول، لفظ کول، ژبه کول، وعده کول په دغو مثالونو کې ګورو چې دغه لفظي تغیر د اصطلاح په معنا باندې کومه اغیزه نه کوي او معنا ورسره نه اوړي، که ووایو ساړه اسویلي کول یا سوړ اسویلی کول. په نوموړي اصطلاح کې په ګرامري لحاظ د جمع پرځای مفرد راغلی دی مګر بیا هم په معنا کې کوم بدلون نه لیدل کیږي.

د پښتو ژبې په اصطلاح ګانو کې داسې ترکیبونه هم شته دی، که د ترکیب د یوې برخې پرځای یوه بله کلمه راوړله شي د ثابت ترکیب په توګه به وي خو د معنا له مخې به توپیرو کړي لکه:

1- هغه ترکیبونه چې لومړی برخه یې بدلون او دوهمه یې په خپل ځای وي، د زړه توریدل، په اصطلاح کې د زړه په ځای سترګي (سترګې توریدل) همدارنګه مخ (مخ توریدل) راشي نو بیا د ترکیب په معنا کې بدلون راځي.

2- هغه ترکیبونه چې دوهمه برخه یې بدلون ومني خو لومړی برخه کې هماغه ټاکلې کلمه وي دلته په معنوي لحاظ ډیر توپیر په کې راځي.

زړه کول، زړه ساتل، زړه وهل، زړه وړل، زړه ایستل، زړه لویدل، زړه ماتیدل، زړه تشول، زړه خوریدل، زړه چاودل، یا سر (خوړل، خوړول، ګرځول، غړول، ماتول).

لاس (لګول، اخیستل، رسیدل، پورې کول، نیول000).

په پښتو ژبه کې داسې اصطلاحګاني هم وینو برسېره پردې چې د هغو څخه مجازي او کنایي معنا لاس ته راځي نو لغوي معنا یا مستقیمه معنا هم ورکوي. لکه: (تاراچول).

الف: په لومړي لغوي معنا کې ښکاري چې تار په ستن کې اچول دي.

ب: په دوهمه معنا کې د اشنایی، دوستی رابطې په معنا سره لکه د فلاني سره یې تاراچولی دی.

ټنی شلول 1- د کمیس ټنی وشلیده.

2- ټنې يې سره وشلولې
دلته مقصد او هدف په دوهمه معنا کې د شخړې او جګړې څخه دی.

## د جوړښت له مخې اصطلاحات:

په پښتو ژبه کې اصطلاحګانې هم د نورو ازادو نحوي ترکیبونو په څېر دوه ډوله (اسمي، فعلي) بېلولی شو.

1- اسمي (نومېز): د نحوي له مخې دغه ترکیبونه اسمي دي. چې د جوړښت له مخې د (Phrase) (غونډ) ترکیب سره توپیرنه لري مګر په فرازیالوژیکي لحاظ بیا دغه اصطلاحي غونډونه بېله مجازي معنا څرګندوي د مثال په توګه:

د بوډۍ ټال، د ګیدړواده، د شړومبو مچ، د اسمان کټ، د غاړې غور، د لستوڼې مار، د عقله پلی، شین امی، نوك اووری، ټيټ وپاس، د سترګو تور، شين زمری.

2- **فعلي**: په پښتو ژبه کې فعلي فرازیالوکیزم په لاندې توګه پېژندل کېږي: د ټول ترکیب (فرازیا لوګیزم) نه د **فعل** مفهوم څرګندېږي او په جمله کې په عمومي ډول د **فعل** (مسند) وظیفه او دنده ترسره کوي. فعلي اصطلاحات یا فرازیالوژیکي واحدونه هم هغه ثابت لغوي ترکیبونه دي چې د دوو اساسي (اسمي (نومېز) او فعلي) برخو څخه جوړ شوي وي چې بشپړ ترکیب د (**فعل- مسند**، خبر) مفهوم څرګند کړي. په جمله کې د مسند (خبر) په دود راځی. د کړنې یا جریان معنا ورکوي او سربېره پردې د ګرامري قاعدو تابع وي.

په پښتو ژبه کې یوه اسمي اصطلاح هم د نورو ازادو ترکیبونو په څېر د یوه **فعل** په مرسته فعلي اصطلاح جوړ وي لکه: د شړومبو مچ سره داسې ترکیبونه جوړو:

1- د شړومبو مچ دی. 2- د شړ ومبو مچ کیدل.

د پښتو ژبې د فعلي فرازیالوژیکي واحدونو په جوړونه کې هغه عناصر چې فعلي فرازیالوکیزم جوړ وي او نومېز عناصر دي د لغوي کتارونو، لغوي ګرامري مختلف لغات او لغوي ترکیبونه دي چې فعلي اصطلاح ګانی یې جوړې کړې دي. په پښتو ژبه کې دغه ډول مثالونه زښت زیات دي چې پر لغوي (تحت الفظی) معنا فرازیالوژیکي معنا یې زیاته ده اوعمومیت لري. لکه:

| اصطلاح | اصطلاحی فرازیالوژیکي معنا | لغوي معنا |
|---|---|---|
| 1- اورته اچول | له منځه وړل، تباه کول | اورته غورځول، سوځول |
| 2- سر له تنی بیلول | مړه کول | جلال کول، بېلول |

3- په ځمکه غورځول     اهميت نه ورکول     پر ځمکه باندې د يو شي اچول يا ګذارول.

همدرانګه خبره اړول، خبره سپينول، بار درنيدل، پوره کول او داسې نور مثالونه هم شته، چې دلته (پوره کول) د فعل يو مرکب شکل دی، خو اصطلاح هم جوړ وي لکه، نيمګړتيا پوره کول.

د کول اوکېدل فعلونه د خپلې پراخې معنا له مخې ډير فعلي فرازيالوګيزمونه جوړ وي.

په پښتو ژبه کې داسمي ترکيب سره فعل د (فعلي اصطلاحګانو په جوړولو کې ستره برخه لري.

په دې توګه مونږ ويلی شو، چې فرازيالوژيکي واحدونه د هماغو لغتونو په اساس جوړيږي چې په ژبه کې موجود وي. دوه يا زيات لغتونه سره يو ځاي کيږي او ټول ترکيب په مجموعي ډول يوه خاصه او ټاکلې معنا لري او د نورو لغاتو په څېر د ژبې په لغوي سيستم کې شامل لغوي معنا معنايز ګرامري خاصيت هم لري.

په پاي کې ښايي يادونه وکړ وچې ټول فرازيالوژيکي واحدونه[1] برسېره د خپلو فرازيالوژيکي معناو په ساتلو د ژبې په نحوي ساختمانو (جملو، فقرو، کې نحوي وظيفه هم ترسره کوي.

په دې معنا چې (اسمي او فعلي) فرازيالوژيکي واحدونه په جملو کې د اجزاو په توګه د جملې ارکان مسند اليه او مسند (مبتداء او خبر) جوړوي. همدارنګه برسېره پردې چې په جملو کې د غونډونو وظيفه لري په خپله هر ترکيب په نحوي چاپيريال کې د بشپړې جملې په توګه هم راځي: اوبه په ډانګ بيلول، اوبه په ډانګ نه بليږي.

1- د لستوني مار، يو اسمي فرازيالوژيکي واحد دی. په جمله کې داسې راځي. (دښمن د لستوني مار دی).

2- په سترګو کې خاورې اچول، په سترګو کې يې خاورې واچولې. په سترګو کې خاورې اچولې.

3- سرتندي وهل (پښيماني کول) په معنا .

ځلمي سرتندی وهي. ځلمي له خپل ورور څخه سرتندی ټکوي. (سرټکول) د شکايت په معنا .

څنګه چې ليدل کيږي متلونه او (Phroverbial, Saying) مقولې غوره ويناوې هم ثابت او ټاکلي ترکيبونه دي خو معمولاً دغه ډول مفاهيم د پوره جملو په توګه راځي لکه: هم يې کري هم يې ببي. اوښان نه ژاړي بارونه ژاړي، ترخه خوره ترخه مه وايه.

☆☆☆☆

---

[1] له يوه  څخه زياتو مور فيمونو، کلمو  څخه ترکيب شوي وي.

☆☆☆
☆☆

# دریېیم څپرکی

# د پښتو ژبې د جملې جوړښت

## د جملې جوړښت او رغنده توکونه (اجزا):

د جملې د پېژندنې په باب مود مخه لیکنو کې زیاتې خبرې کړي دي دلته مونږ غواړو چې د جملې د جوړښت اوساختماني توکونو په باب څه ووایو.

زمونږ مطلب د جملې هغه ساختمان دی چې یوه بشپړه جمله د کومو برخو او توکونو څخه رغیدلې ده او ددغو برخو او اجزاو د شومره والي له مخې د جملې ترکیب، جوړښت، ډولونه څرګندیږي. په یوې جملې کې د کلمو، مورفیمونو اندازه او شمیر سره توپیر لري په دې معنا چې یوه جمله له دوویا زیاتو کلمو څخه جوړه شوې ده.

د یوې جملې په جوړښت کې دغه لاندې توکونه برخه لري:

1- اصلي (خپلواک) توکونه: په دې برخه کې ټول ازاد او خپلواک مورفیمونه (نومونه دا شیاو نومونه، صفتونه، ضمیرونه، عددونه (شمیر نومونه) فعلونه (بشپړ- مرستیال) یا ساده اشتقاقي، ترکیبي، قیدونه (اصلي، غیر اصلي) راځي، دلته ښایي ووایو چې دغه توکونه مختلفو سوالونو ته

په ځانګړي توګه ځواب ورکوي يعنی د موضوع څرنګوالی، څومره والی، فعاليت او داسې نور مفاهيم نوموي او ياورته اشاره کوي او يا خو هم ګرامري لغوي معنا ښندي.

2- مرستيال (کومکی) توکونه: په ځانګړي توګه د جملې خپلواک توکونه نه دي ځکه دغه ناخپلواک توکي په جلا توګه سوالونو ته ځواب نه ورکوي او د کوم شي نومونه نه ده يوازې په جمله کې ګرامري معنا رسوي. مرستيال- کومکي توکونه ورته ځکه ويلی شي چې د جملې د اصلي توکونو، ترکيبونو او جملو ترمنځ ارتباط او تړون ټينګوي، مرستيال (کومکی) (نه اوړيدونکي) (نه ګردانيدونکي) توکونه دي چې په دې کې ادات (ربط، عطف، پيشينې او پسينې) او داسې نور راځي. د څرګندتيا له پاره دغه لاندې بېلګه ګورو:

د خلکو سره مرسته په کارده. دغه جمله په دې توګه تجزيه کوو: د، خلکو، سره، مرسته، په، کار، ده.

ګورو چې دغه جمله له اووتوکونو څخه جوړه ده مګر په دې کې څلور خپلواک (اصلي) او نور ناخپلواک (مرستيال) توکي دي چې په دې توګه دغه جمله په لاندنيو برخو سره بېلوو:

د خلکو سره/ مرسته په کار ده.

په دې جمله کې (د خلکو سره) د مسند اليه (مبتدا) بنه لري چې لومړۍ برخه ده او (مرسته په کار ده) خبر (مسند) او (ده) د (اسناد) برخه ګڼل کيږي.

چې په مجموع کې (مرسته په کار ده) د جملې دوهمه برخه (خبر- مسند) دی. يا دا بل مثال : هغوي د خلکو سره مرسته کوي.

په دې جملې کې هغوي (فاعل) (د خلکو سره) معيتي قيد) (مرسته د فعل متمم) (کوي) فعل او په مجموع کې (هغوي مبتداء او د خلکو سره مرسته کوي (خبر) دی.

په پښتو ژبه کې داسې مثالونه هم لرو، چې د کلمو اندازه او شمېر يې دجملې د اجزاو سره برابر وي لکه: ليونۍ راغله.

لومړۍ برخه ليونۍ (فاعل) دوهمه برخه راغله (فعل) دی.

په پښتو ژبه کې کلمې چې خپلواکې معناګانې ولري د خپل نحوي دريځ له مخې د جملې بيلا بېلې اجزاوې هم جوړ وي لکه:

1- کابل د افغانستان مرکز دی.

2- مونږ په کابل کې اوسيزو

4- دغه د کابل ښار دی.

5- دغه لوی ښار کابل دی

3- کابل په یوه ښکلي ښار بدلوو                    6- مونږ کابل ته ځو.

دلته په دغو جملو کې د کابل کلمه په ترتیب سره ګورو چې، کابل 1- مسند الیه 2- ظرف مکان 3- مغفول 4- مصاف الیه 5- خبر 6- غیر مستقیم مفعول یا (د تم ځای حالت) په توګه راغلی دی.

د پورتني مطلب څخه دا نتیجه ترلاسه کوو، چې په پښتو ژبه کې د جملې اجزا د دوو څخه نیولې تر زیاتو تو کونو پورې رسیږي په همدغه اساس ساده (لنډه) او منکشفې (ارته) جملې سره بېلیږي.

بیلګه : لمر راوخوت، ساره دي،پسرلی شو.) دا لنډې یادوه توکیزې جملې دي، مګر که ووایو: زه او زما ورور د خپلو او خپلوانو سره د هیواد ختیځې برخې ته تللي وو. نو بیا دا یوه اوږده (منکشفه)[1] جمله بلله کیږي. په دې توګه مونږ په پښتو ژبه کې د جملې اساسي برخې په مبتدا (مسند الیه، فاعل) او خبر (مسند ، فعل) باندې بېلوو او په دې کې د جملې اصلي (لومړۍ درجه) او فرعي (دوهمه درجه) غړي په لاندې توګه ښودل کیږي.

د جملې رغنده توکونه




[1] ارتباطي ادات هم په فرعي توکو ک را ي.

**فاعل + مفعول + فعل (متعدی معلوم)**
**مفعول + فعل (متعدی مجهول)**

## د فعل او فاعل متعلقات او مربوطات:

1- د مهال (زمانی) قید 2- (د ځای (مکانی) قید) 3- د حالت او وضعیت قید او مقیاس، اندازه ده چې د فاعل، مفعول، فعل حالت او کیفیت ښیي. 4- پیل ځای چې د فعل د شروع کیدلو مبدا ورڅخه معلومیږي. 5- د مقصد سبب او کیفیت قید چې د فعل د کیدلو انتها علت سره د مقصد او ځای ښکاره کوي. 6- ملتیا چې د فاعل او مفعول ملتیا او معیت څرګندوي.

3-2-1 مطلب د قیدونو په واسطه ښودل کیږي او 4-5-6 مطلب د ارتباطي اداتو په واسطه ښودل کیږي.

الف: د جملې اساسي برخې یا دجملې لومړی درجه غړي:

دا یوه څرګنده خبره ده، چې یوه جمله برسېره پر فرعي توکونو دوې اساسي برخې لري چې ددغو له پیوستون څخه بشپړ مطلب لاس ته راځي.

مبتدا او خبر د جملې مهمې برخې ګڼلی شوي دي او داوړه برخې دیوې جملې زړې جوړوي دا ځکه چې مبتدا او خبر پرته له فرعي اجزاو څخه هم یوه پوره او ځانګړې جمله جوړ ولای شي.

لکه: روښنایي راروانه ده، هیواد پرمختګ کوي. هلکان راغلل. شپه تېره شوه.

لیدل کیږي چې په هرې جملې کې د مسند الیه او مسند برخې په خپلواکه او مستقله توګه راغلي او په دغو جملو کې نورو اجزاوته کومه اړتیا نه لیدله کیږي.

یادونه: مونږ د پښتو او فارسي ژبو د ځینو ګرامرونو د مطالعې څخه د مسند الیه فاعل – مبتدا او مسند ، فعل، خبر د اصطلاحګانو سره مخامخ شوي یو لکه دمحمد ګل مومند (پښتو ژبې لیاره 1317) د پوهاند رښتین پښتو ګرامر د محمد اعظم ایازي (د پښتو قاعدي 1328) د عظیم شاه خیال (صرف ونحو پښتو)، د پوهاند الهام (روش جدید در تحقیق دستور زبان دري) همدارنګه د پرویز خانلري په (دستور زبان فارسي) کې دنهاد – ګذاره په نامو سره راغلي دي.

په هر حال مطلب په کې ټاکلي او معيني برخې دي چې مخکې پرې غږيدلي يو. په جمله کې دغه دوې اساسي برخې په اسمي او فعلي غونډونو بېلېږي چې اسمي برخې ته يې (مسند اليه، فاعل، مبتدا) او فعلي برخې ته (مسند ، فعل، خبر) وايي.

په پښتو ژبه کې فعلي غونډونه د (مسند ، فعل) په توګه او اسمي غونډونه هم د مسند اليه په توګه او هم د مسند په توګه راتلای شي چې دا بيا په اسمي او فعلي جملو کې دغه موضوع ښه څرګندېدای شي.

## لومړی : مبتدا ، مسند اليه، فاعل (Subject):

په ګرامري توګه د جملې يوه خپلواکه او مستقله معنا لرونکې برخه ګڼله کيږي، په جمله کې د هغې په باب خبر ورکول کيږي.

يا په بله وينا مسند اليه هغه برخه چې د هغې په نسبت څه ويل کيږي يعنی د يوه حکم نسبت ورته کيږي. د څوك، چا، څه پوښتنو ته ځواب ورکوي. په پښتو ژبه کې مسند اليه (فاعل) په خپلواکه توګه د جملې يوه اصلي برخه جوړوي. په دغې برخې کې د کلام د ټولو اجزاو څخه د (فاعل، مسند اليه) په توګه راځي چې په هغې کې د اشخاصو نومونه د شيانو نومونه ساکښ او بې سانومونه، ضميرونه، صفتونه، عددونه، قيدونه په ساده يا مرکبو (ترکيبي) (اشتقاقي) شکلونو سره هم راځي. په پښتو ژبه کې د قاعدې له مخې نومونه، صفتونه، ضميرونه، عددونه برسېره په اصلي حالت په مغيره (غير اصلي) حالت سره هم راځی چې دغه برخه جوړ وي. همدارنګه د ارتباط له اداتو سره د (Postpsition, Prepostion) د پيشينو او پسينو سره هم يو ځای راتلای شي، چې مثالونه به يې يو يو په وروسته ډول راوړو:

په پښتو ژبه کې مبتدا (مسند اليه، فاعل) د کلام د بېلا بېلو توکو په مرسته:

1- الف: چې مبتدا يو مفرد عام نوم وي دغه نوم په جمله کې نسبت نورو نومونو ته اساسي وظيفه ترسره کوي.

لمر راوخوت، پوهنه رڼا ده. بزګر د خپلې ځمکې په فکر کې دی.

لمر، پوهنه، بزرګر مفرد عام نومونه دي چې په جملو کې د (مسند اليه، **فاعل**) وظيفه لري.
ب: د جمعيت نوم د مبتدا (**فاعل**) په توګه راغلي وي:
اولس غونډه وکړه. جرګه راغله. لښکر پرشاشو. رمه څريږي.
ج: (مبتداء، **فاعل**) د جنس نوم په ډول څرګند شي: غوړي توی شول. او به تويې شوې. تيل، سوځيږي. اوره خلاص شول. غنم خلاص شول.
د: (مبتداء، **فاعل**) يو خاص نوم وي: بايزيد (روښان) مسجع نثر ليکلی دی. خوشحال ختټک ښه شعرونه ويلي دي. ميرويس (نيکه) صفويانو ته ماتې ورکړې ده. (مرغۍ پاڅيدلې او په زاريوېې لاس په تندي کېښود)

په اسمي جملو کې: درخانۍ د طاوس خان لوروه. کابل لوی ښار دی.
هـ: چې مبتدا يو مجرد (معنا) نوم وي: روغتيا لوی نعمت دی. ښيګڼه ښه ده.
2- په جمله کې مبتدا (**فاعل**) د جمع عدد نومونه وي:
بزګران دمني په کرکيله لګيا دي. نرخونه له پخوا نه جګ لاړل. يا دغه بل مثال کې:
لنډه دا چې غرونه وجړ کيدل، سيندونه وشنېدل، بادونه وزغليدل، ستوري وځرخيدل، کاينات وخوځيدل، دزيږندې او ودې له مخې بنديزونه لرې شول.
3- (مبتدا، **فاعل**) چې نومونه په اوښتي بڼه (مغير حالت) کې وي.
الف: مفرد مغيره شکلونه:
پوهنې ټوله نړۍ رڼا کړه. ټولنې وده کړې ده. پسرلي ښه زيری راوړ.
ب: د جمع مغيره شکلونه:
دهقانانو د مني فصلونه ټول کړه. خلکو تلوار کاوه.
چرګانو بانګونه ووې. لوستلو معلومات ډېر کړه. اوبو لاره وکړه.

4- د جملې مبتدا (فاعل) ضمیرونه وي:
الف: شخصي ضمیرونه:
زه تاته په غیږ کې ځای درکوم ښه راغلې. زه تاته ننواتې راغلی یم نو ته زماننواتي ومنه.
دی دې هڅه وکړي. دا د خپل هیواد په ستونزو لاخبره نه ده. هغه په بیړه راغله.
شخصي ضمیرونو مغیره شکل د مبتدا (فاعل) په توګه:
ما د ځان سره کرل ریبل تاڅه وکړل. ده یوه لاره جوړه کړه.
دې هیڅ ونه ویل. هغه خیال کړی وچې دا کار ډیر اسان دی. هغې بې ځایه هلې ځلې کولې.
ده پر خلکو ملنډې وهلې.
ج: د شخصي ضمیر جمع د مبتدا په توګه:
مونږ حقیقت لټوو. تاسو څېړنه کړې ده. دوي د رحم زړه نه لري.
دوي د ظلم نه دومره خوند اخلي لکه چې د رحم نه یې زړه سواندی انسان اخلي.
د: استفهامي ضمیرونه د فاعل (مبتداء) په توګه:
څوک تا په کلي کې نه پرېږدي؟ څوک لټوئ؟ څه کیږي؟ څومره ویل کیږي؟
مغېره شکل: چاولید؟ چا ولټول؟ چابیړه وکړه؟ چا ولیکل؟
همدارنګه څووم دی؟ څووم ولاړ؟ کوم راغی؟ کومه راغله؟ څوومه ده؟
دجمع په صورت کې: څووم راغلل؟ کوم راغلل؟ کوم لاړل؟
مغیره صورت یې: کومو بیړه درلوده؟ څوومو راوړل؟
هـ: مبهم ضمیرونه د مبتداء په توګه:
ټاکلي: څوک کارکوي او څوک ساعت تیروي. څوک راغلل او څوک رانغلل. چاکار وکړ او چاونه کړ. څوک به کار کوي او څوک به ساعت تیروي.
هر څوک حاضر دي. هر چا خپله رایه وړاندې کړه.
ناټاکلي: څه دادي او څه نور دي. څه په سترګونه لیدل کیږي. هر څه دلته پیدا کیږي. هیچاونه لیدل. هیچا پاملرنه ونه کړه. یو څوک راغی، بل څوک زما په کار نه پوهیږي. کوم یوه وویل، دلته هیڅ نه پیدا کیږي.
یادونه: په هغو جملو کې چې ناخپلواک ضمیرونه (مې، دې، مو، یې) د فاعل په توګه وي نو بیا د جملې د اجزاو ساختمان په دې ډول راځي:

کتاب مې ورکړ- قلم مې ورورباخښه، کورېي جوړ کړ.

5- مبتدا (فاعل) په جمله کې صفتونه وي:

ښه ښه دي بد بد دي. هوښيار دي. ليونی راغی. ويده هماغسې ناخبره پاتی شو. موړ د وږي له حاله څه خبردی. پلی د سپور له حاله څه خبردی. يا دا متل: خپل خپل دي پردي په ډېرو نارو خپل دي.

نسبتی صفات: کندهاری راغی. ويرجن ارمانجن ناست دی. څمکه وال خپله څمکه سمبالوي.

فعلي صفتونه (نومونه): فاعلی صفت د مبتدا (فاعل) په حيث:

ښوونکي خپله دنده ترسره کوي. ليکونکی ليك ليکي. څارندوی شپه او ورځ کارکوي.

مفعولي صفت د مبتداء (فاعل) په توګه:

وهلی لاناست دی. رټل شوی خبرې نه کوي. څپلی له ځان سره خبرې کوي.

---

**يادونه: پرته له وك او چا خه نور ول استفهامي ضميرونه د مرجع سره را ي چ استفهامي صفت هم ورته وايي (ې تو رامر لومؤي وك 61- مخ د ليکوال درسي کستتنر.**

فعلي نومونه: اوربښت کښتونه خړوبوي. لګښت ډېر شو.

روزنه د ماشومانو له پاره يکارده. پالنه د ماشومانو له پاره يکارده.

مصدر د مبتدا په توګه:

تيری کول لويه ګناده. ليکل اسان کار نه دی. ليکلو ستړی کړم، ژبه کول له مشرانو سره ښه خبره نه ده.

6- مبتدا د شمير (عدد) نوم وي:

1- په دې کې يوځي او يو راځي خبره نه ده معلومه. پنځو تنو څخه دوه راغلي وو.

2- لومړی وايي. لومړي وويل. شپږم کوټې ته راغی. اتم لاپاتی و.

3- شل په څلورو تقسيمېږي.

لس جوړه عدد دی. نولس به شل نه شي. پورتني زيات شمير مثالونه چې راوړل شول د ساده توکونو په توګه راغلي وو. مبتدا کله په ساده او کله په ترکيبي ډول هم راځي.

الف: مبتدا چې ساده جوړښت ولري: هغه زيات شمير مثالونه چې مخکې مور اوړي وو په دغه برخه کې راځي.

ب: ترکيبي: هغه چې (مبتدا، فاعل) له دوو څخه زيات کلمات وي لاندې مثالونو کې يې ګورو:

## لومړي په ترتيب سره اول دا ضافي ترکيب[1] مثالونه راوړو:

1- (مسند اليه، فاعل، مبتدا) هغه اضافي ترکيبونه وي چې مضاف اليه او مضاف يې يو توکيز مفرد (ساده) نومونه وي.

د کابل ښار ډېر لوی ښوی دی. د شپونکي شپيلۍ په جرس راغله. دودانۍ بنسټ کيښودل شو.

2- مضاف اليه مرکب (اشتقاقی، ترکيبی) او مضاف يوتوکيزوي، مثال : د افغانستان خلك په خپله اراده ټينګ ولاړ دي.

د خوشحال خان اشعار په پښتو ادب کې يوه لويه او درنه پانګه ده.

3- مضاف اليه د جمع عدد په شکل او مضاف مفرد نوم وي:

د پتګانومينه ښکاره ده، د زمريو کور بې هډوکي نه وي. د شاعرانو خيال لوړ ښکاري. داديبانو فکر پوخ وي. د ګلانو رنګ ښه ښکاري.

4- چې مضاف اليه مفرد او مضاف د جمع نومونه وي.

د باغ ګلونه په غوړيدو شول، د مينې اوښکې په ګريوان دي.

5- د مبتدا په توګه چې مضاف اليه او مضاف دواړه د جمع عدد نومونه وي:

د غرونو سرونه سپين ښکاري، د زمانې توپانونه راغلل. د اميدونو غوټۍ ګل شوې

د مبتدا په توګه د هغو اضافي ترکيبونو مثالونه راوړو چې مضاف اليه (نوم (اسم) او مضاف توصيفي ترکيب وي:

د پسرلي ښکلې خيره رابرخيره شوه.

د لمر تودو وړانګو په کې ګرمې او تودو ښېې واچوله (نوي کال نوي زيري).

اوس د هغو ترکيبونو مثالونه په مبتدا کې راوړل کيږي، چې مضاف اليه توصيفی ترکيب او مضاف اسم (جمع) وي:

د سرو ګلونو کتارونه جوړ شول او د زېړو ګلونو صفونه ودريدل.

---

[1] يادونه: الف: په پ تو ژبه ک دغه أول ترکيبونه د اضافی ترکيب په نامه يادېږي چ د دريو توکونو د اضافت د مضاف اليه + مضاف خه جوړېږي. که مضاف اليه ناخپلواك ضميرونه وي نو بيا مضاف د مخه را ي. لکه: قلم م پرميز پروت دی. کتاب ي ورك شو.

ب: همدارن ه په نظم او نثر او نورو ايونو ک دغه ترکيب کله نا کله بدليږي او مضاف د مضاف اليه خه وړاندې را ی چ دغه أول ته بدلي ترکيب وايي لکه: ونه د چنار يك ي په اوربل+ ماليدلی خال دی پ ي خندل يا اوبه د چين خوږې دي. پا ه د ور ورې ده.

هغه ترکیب چې صفتونه یې له دوو نه زیات وي د مبتدا په توګه راوړل کیږي یعنی مضاف الیه زیات شمیر توکي ولري.

1- دشین بخملي ګلالي فرش موسم راغی.

2- د خوږو ارمانو، پاکومینو، ستر منو ارزوګانو او سپیڅلو امیدونو ماشومان وزنګیدل.

دویم: مبتدا (فاعل) د توصیفی ترکیب په توګه: په دې معنا چې دغه ډول ترکیبونه دیوه صفت او یوه اسم د یو ځاي کیدو څخه لاس ته راغلي وي.

په پښتو کې صفت تر موصوف د مخه د مطابقت په ډول ترکیبیږي[1].

توره وریځ راببره شوه.

خوږې نغمې د ملنګ جان د اشعارو مجموعه ده.

فعلي صفتونه د موصوف سره توصفي ترکیب د مبتدا (فاعل) په توګه:

تللې او به په بیرته نه را ګرځي. توکلې لاړې بیرته نه راځي. رټل شوي هلك غلی ناست دی.

تلونکي سرې ورو ورو روان دي.

## دریم: مبتدا اشاري ترکیبونه وي:

دا قلم تور دی. دا اوښکې خوږونه شوه. دې زمانې د ځان سره نوي شیان راوړي دي.

اوس هغه پخوانۍ زمانه نه ده. دا اوړه خراب دي.

دغه لرګي لامده دي. دغې ښځې کور ودان کړ. (مغیره شکل).

## څلورم: عددي ترکیبونه د مبتدا په توګه:

1- زمونږ په کور کې یو ګل وغوړید.

2- څلورتنه ناست او خبرې کوي.

3- پنځه کمربندونه تش شول.

4- دولس کلنه دوستي خرابه شوه.

5- شلم قرن دی. شمله پېړۍ ده.

6- یولس تنه سرې کار کوي.

7- درې هلکان سیند غاړې ته راغلل.

8- پنځه ګوتې سره برابرې نه دي.

9- یو څو کاله په دغه توګه تېر شول.

یو څو کسه نارینه راغلل، یو څو خبرې به کیږي. په سلګونو خلك راغلي وو.

---

[1] **یادونه: خاص نومونه، لقبونه د موصوف نه وروسته را ي لکه احمد شاه بابا، حمید بابا، میرویس نیکه، زرغونه انا**...

## پنځم: مبتدا (مسند الیه) عطفي ترکیب وي:

الف: (یو توکیز) دوه مفرد نومونه د عطف په صورت کې:

1- بریالی او اڅك راغلل. 2- وړانګه او پلوشه ناستې دي.

دوه د جمع نومونه:

1- زاړه او ځوانان د وطن د ابادۍ له پاره کار کوي. 2- ګډې اووزې په مزه مزه په څرلګیا دي.

ب: صفتونه د عطف په توګه:

1- وږي او تږي ناست دي. 2- خپل اوپردي ورنه راټول وو.

3- زورور او کمزوري سره معلوم دي. 4- زورورو او کمزورو سره معلومه کړه.

5- ځورونکی او خپه کوونکې خبره ده. 6- جوړ او روغ یې سره پرېښودل.

7- لاندہ او وچ یودي. یا وچ او لاندہ سره یودي.

ج: په مبتدا کې ضمیرونه د عطف په ډول وي.

1- زه اوته به د وطن په پرمختیا کې هڅه کوو. ته او زه به سره یو ځای کار کوو. ما او تا سره وپېژندل. تا او ما کارونه سره وویشل. دا اودی سره خور او ورور کیږي. ده او دې څه وکړل. هغه او هغې خبره پخه کړې ده. هغې او هغه خبره کړې ده.

د جمع په توګه: تاسې او مونږ څه کوو، مونږ او تاسې ټول رانده یو. دوی او هغوی پلان جوړوي. هغوي او تاسې څه کوئ.

## شپږم: مبتدا، فاعل استثنايي ترکیب وي:

بې له ماټول حاضر وو. تاسی پرته له مونږ ولاړیئ. دوی بې له ده نه څه نه شي کولای. ټول په غیر د ځلمي نه راغلي وو.

اووم: مبتدا (فاعل) بدلي ترکیب وي: ستا ورور بریالی راغی.

چې ګلونه د بهار واړه تمام شي، د زړه سود شیدا بلبله په ختوکي

اتم: متعدده مبتدا لرونکې جمله:

که چېري په یوې جملې کې دوه یا زیاتې مبتداګانې (فاعل) د یوه خبر سره راغلي وي نو دغه جمله متعدده مبتدا لرونکې جمله ګڼله شي.

لکه: 1- ښایستو کې مرغۍ او ګلالۍ بلبلې خبرې شوې.

2- د هیواد مشران، د کلي خانان او ملکان او داسې د اولس خلك راغلي وو.

3- د ښوونځیو زده کوونکو، د دوترونو کار کوونکو، د پوهنتونو محصلانو، د کارخانو مزدورانو او کارګرانو په ګډه کار کاوه.

یادونه: همدارنګه د پښتو ژبې تکراري (بشپړ او نیمګړي) ترکیبونه هم د مبتدا په توګه راځي چې البته دلته يې د ټولو راوړل د هر وخت غواړي. دغه څو مثاله راوړو:

اولسونه اولسونه تبا شول، ښه نا ښه ګډ دي. کلي کلي نړيږي، ګڼ ګڼ پراته دي.

سره دوه دوه کيږي. يو يو راروان دی.

2- اخلي پخلي کيږي، سابه مابه پخيږي، ژرنده مرنده ماته شوه.

## دوهم: خبر (مسند) (فعل) (Predicate) :

خبر (مسند، فعل) هم لکه د (مبتدا، مسند اليه، فاعل) د جملې بله مهمه برخه ده. مسند د مبتدا او مسند اليه حال ښکاره کوي[1] په جمله کې خبر دځه کوي، څه کيږي، څه ډول (څنګه) دي.

څه دي، څوك دی، د چا، څه په باب، څه وخت، چېرته سوالونه ځواب ورکوونکی دي.

د پښتو ژبې د ټولو جملو د څېړنې او مطالعې څخه داسې نتيجه تر لاسه کوو:

1- د جملې خبر د مبتدا په شان د کلام د ټولو توکونو څخه راتلای شي.

2- خبر د جوړښت له مخې ساده (يوتوکيز) مرکب (دوه توکيز، ترکيبی) او په متعدده توګه سره راتلای شي.

3- د پښتو ژبې په جملو کې هغه څه چې د خبر په توګه راوړل کيږي يا به فعلي غونډوي او يا خو به اسمي غونډوي.

4- هغه جملې چې د خبر په برخه کې يې يو پوره فعل او يا فعلي ترکيب (غونډ) وي د فعلي جملې په نامه او هغه چې دخبر برخه يې د مبتدا په څېر اسمي وي داسمي جملې په نامه ياديږي. نو په دې توګه په پښتو ژبه کې خبر په دووډولو ويشل کيږي:

اسمي او فعلي: داسمي او فعلي اصطلاح په ډيرو نورو ژبو لکه روسی[1] فارسی او داسې نورو کې هم شته او په همدغه ترتيب سره جملې په اسمي او فعلي باندې جلا کيږي، نو په دغه اساس په پښتو ژبه کې هم جملې په اسمي او فعلي باندې ويشلی شو:

---

[1] **پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر دويم وك، کابل چاپ** 1370 **لمريز کال.**

[1] **پ.ا. ليکانت، معاصره روسي ژبه ک د ساده جملو نحوي سيستم، مسکو.** 1974 (17-43-46) **مخونه.**

اسمی جمله: هغې جملې ته وايي چې مسند اليه او مسند (مبتدا او خبر) يې دواړه نومونه وي يعنی د مبتدا او خبر برخې يې داسمي غونډونو (اجزاو) څخه ترکيب شوي وي او د يو اسناد (کومکی فعل) په مرسته يې سره ارتباط پيدا کړی وي يا په بله ژبه داسمي جملې اساسي توکي درې دي (مسند اليه، مسند، اسناد) د مسند اليه او مسند ترمنځ حکم ته اسناد وايي[2].

په اسمي جملو کې (خبر، مسند) د کلام ښېلا ښېلې اجزاوې (نومونه، صفتونه، ضميرونه، عددونه، قيدونه، فعلي صفات، اسمي فرازيالوژيکي ترکيبونه) په مستقيم او غير مستقيم حالت سره راتلای شي.

په سوال او ځواب، ديالوګ، متلونو او اصطلاحګانو کې کومکي فعلونه غورځيږي لکه: د ښيزو دوستي د ځان تاوان. خپل عمل د لاري مل .سردې ګل بيخ دې پياز.

د مثال په توګه يو څو اسمي جملې په لاندې توګه ګورو.

1- نوم په اصلي حالت کې د خبر په توګه او د کومکي فعل سره:

خوشحال خوشحال دی. زه ښوونکي يم. دی استاد دی. د کلي مشر خانميردی.

2- نوم په غېر اصلي حالت کې د پېشيني او پسينې سره د خبر په توګه:

داړونکي ځناوران په ځنګله کې وي. دی زمونږ له دوستانو څخه دی.

3- په جمله کې صفت داسمي خبر په توګه:

د کابل د ښار کوڅې لويې دي. دغه ښار زوړ دی. د ظلم ماڼۍ ړنګه ده. هواروښانه ده. کتاب پر ميز پروت دی. ښه خلك لږ دي. په دغو جملو کې لويې دي، زوړ دی، ړنګه ده، روښانه ده، پرميز پروت دی داسمې خبر په توګه پېژندل شوي دي.

4- فعلي صفت (نومونه) داسمي خبر په توګه:

دوي خپل کلي ته تلونکي دي. داسې وخت راتلونکی دی. اباسيند تل څپاندوی.

په دوبي کې لمرسوځونکی وي. ځلانده دی. دی ښه ګټندوی دی. ښېتانه د هيواد ساتندوی دي.

ماشومان خوځنده دي. ددې کتاب څومره ارزښت دی.

5- قيد داسمي خبر په توګه:

ددوي کور د ښار له مرکز څخه لرې دی. کتاب هلته دی. خبره نژدې ده.

6- ضمير د خبريه توګه: ددې هلك پلار دی دی. دده مطلب زه يم، ته ته يې اوزه زه يم.

---

[2] **پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر دويم وك د نحوې برخه، کابل،** 1370 **لمريز کال.**

7- خبر اضافي ضمير وي: دغه کور زمونږ دی. دغه کتاب ستادی. ددغه کتاب لومړی برخې زما دي.

8- اسمي خبر د پوښتنې (استفهامي) ضميرونه وي: دغه راروان هلك څوك دی. دلته څوك دي؟ هلته څه دي؟ خلك څومره وو؟ د پوهنځي لارکومه ده؟ دی په ټولګي کې څوم دی؟ دغه ښکلی ليك د چادی؟

9- عدد د مسند (خبر) په توګه: په پښتو ژبه کې واولونه اته دي. دا کوټه پنځمه ده. خبرې ډيرې سرې يو دی.

10- مصدر داسمي خبر په توګه: ددوي مقصد تلل وو. ددوي مطلب يوازې او يوازې پخلا کول دي.

11- فعلي نوم (حاصل مصدر) داسمي خبر له پاره: لومړنی زږده کړه د کوچنيانو له پاره روزنه او پالنه ده.

12- د ترکيبونو (غونډونو) په توګه د اسميه خبر څرګندونه:

1- د اضافي ترکيب په توګه:

خوشحال خان د ملك اکوړي لمسی دی. خندا د ژوند مالګه ده.

2- د اضافي ضمير ترکيب داسمي خبر په توګه: دغه هلك زما ورور دی. دا زما سره هلك زما د ترور زوی دی. دا وطن زمونږ مور ده.

د پوښتنې له پاره: دغه سړي د چا ورور دی؟ ادم خان ا درخانی د کوم ځای وو؟

3- توصيفي ترکيب د خبر په توګه: خوشحال خان ختك پياوړی شاعر دی. روغتيا او صحت لوی نعمت دی. علم پټه خزانه ده. نن څومره ښه هوا ده. ناست کسان ښه خلك دي. څه ښکلې مرغۍ ده!

همدارنګه صفات د قيد په توګه هم توصيفي ترکيب جوړ وي او په اسمي خبر کې داسې راوړل کيږي: نن ډېره ښه توده هوا ده.

4- د شمير (عددي) ترکيب په توګه د خبر څرګندونه: علم يوه رڼا ده. يوه اوونۍ اووه ورځې ده او اووه ورځې يوه اونۍ ده. دروژې مياشت ډېرش ورځې ده. په ساعت کې اوس څلوربجې دي.

5- خبر د يو ظرفي ترکيب په توګه: نمراو سپوږمۍ په اسمان کې دي.

ملالۍ په کور کې ده. کتاب پرميز باندې دی. قلم تر ميز لاندې دي.

## په پښتو ژبه کې فعلي خبر:

فعلي جمله: هغه جملې دي چې خبريې فعلي بشپړه بڼه ولري يعنى د **فعل** برخه يې اصلي فعلونه وي، يا په بله وينا فعلي جمله هغه ده، چې له پوره فاعل **فعل** او يا له فاعل، مفعول، **فعل** نه جوړه وي.
په دغه ډول جملو کې خبري برخه د **فعل** ټول ګرامري شکلونه (زمانه، جنس، عدد، شخص، وجه، حالت) د فعل ډولونه، لازمي، متعدى، معلوم، مجهول، مثبت او منفى) خواوې څرګندېږي.
همدارنګه فعلونه د جوړښت له مخې يو توکيز (ساده) دوه توکيز (اشتقاقي، ترکيبي) وي.
ترکيبي فعلونه يعنى هغه نوميز فعلونه دي چې د يو (اسم، صفت، عدد، قيد، مصدر، فعلى نومونه) د کومکى (مرستيال) فعلونو په مرسته جوړيږي البته د ساده او (ترکيبي، اشتقاقي) فعلونو زيات شمير مثالونه په زياتو ماخذونو*کې ليدلى شو. دلته مونږ يوازې د فعلي جملو مثالونه په لاندې توګه راوړل غواړو:

ساده لازمي **فعل** د خبر په توګه: زه ښار ته ځم. تاريخ درومي.

ساده متعدي **فعل** د خبر په توګه: دى اخبار لولي. ده اخبار ولوست.

اشتقاقي او ترکيبي فعلونه د خبر په توګه: لمر راوخوت، کتابونه به راوړم. ليکونه به وليکو. له دې اوبو، به پوريوځي.

**بل** مثال: ځمکه به او به شي. ځمکه به اوبه کړي. فلم په اتو بجو شروع کيږي. کارونه به په لسو بجو ختم شي.

بريالى خپلو هيلوته نژدې کيږي. دوي په **خپل** کورکې ارام کول غواړي. ماشومان لوبې کول غواړي. مونږ په دې خبره ځان خبرول غواړو. دوي په تهمت او تور ونيول شول. د کور **غل** نه نيول کيږي. څوك د کور **غل** نه شي نيولاى.

په دغو جملو کې ليدل کيږي چې خبر د بشپړو ترکيبونو په توګه راغلى دى.

## خبر په متعدد ډول:

---

* 1- **پوهاند صديق ا   ر  تين، اشتقاقونه ترکيبونه، کابل.** 1327**.**

2- **محمد اعظم ايازى، قواعد پ  تو، کابل،** 1324 **(د فعل برخه)**

3- **هربريت پنزل، پ  تو  رامره کابل،** 1340**.**

4- **داکتر زرغونه، پ  تو  رامر، کابل،** 1360 **درس  ستتنر (د فعلونو برخه).**

په پښتو ژبه کې د جملې خبر په متعدد ډول هم راځي، په دې معنا چې د يوه مبتداله پاره څو خبره ذکر شوي وي، که چيرې په يوه جمله کې د يوه خبر له پاره زياتې مبتداوې راشي نوهغه جمله متعدده مبتدا لرونکې جمله ده. همدارنګه که په جمله کې ددوونه زيات فعلونه (خبر) (اسمي-فعلي) راوړل شوي وي نو دا به هم د متعددې خبر لرونکې جملې په نامه يادېږي لکه: دی له قهره پاڅيد ، کښيناست، ويې ويل:

دی د جملې فاعل، پاتې برخه د فاعل سره نحوي رابطه لري او د فعل مطابقت د فاعل سره ثرګندوي. لونګك پورته وغورځيد ، کښته وغورځيد ، له ډيره قهره غلی شو. په فعليه جمله کې د جملې اصلي توکي درې ښودل شوي دي: فاعل، مفعول، فعل، البته په متعدي فعلونو کې مفعول هم د فعل د معنا د بشپړونکي توکي په حيث د جملې مهم جز ګڼل کيږي.

**مفعول**: هغه څوك ياشی دی چې دفعل اثرور باندې شوی وي ياور رسيدلی وي. مفعول د خبر بشپړونکې برخه ده. که چېرې په يوه جمله کې فعل متعدي وي يوازې د فاعل ذکر وشي او مفعول رانه وړل شي نو په دغه صورت کې معنا به روښانه نه وي لکه: بريالي. . . وکړه. بريالي. . . بوتلله. دلته د مفعول شته والی چې د فعل د معنا ثرګندونکی يا متممه برخه ده نه دی راغلی نو په دې توګه مطلب هم پوره نه دی رسول شوی او که ووايو بريالي يوه وکړه. يابريالي کلبه وکړه. يابريالي کلبه بوتله نو مطلب پوره شو.

په يو شمير هغو ګرامرونو کې چې ختيځ پوهانو برابر کړي دي مفعول هم د جملې دوهمه درجه غړی ګڼلی شوی دی ولی دا خبره به يو څه د غورور هم وي ځکه په معلوم متعدی فعل کې د فاعل شته والی، مفعول له فعل سره د جملې خبر جوړ وي ولې په مجهولو فعلونو کې بيا مفعول د نائب فاعل په توګه دجملې مبتدا (مسند اليه) ګڼل کيږي.

په هر حال مفعول د جملې د يوه توکي په حيث د فعل متمم ګڼل شوی دی په جمله کې د مفعول دريځ د هغې په نحوي موقعيت پورې اړه لري.

## مستقيم او غير مستقيم (Directobject) او (Indirectorbject) مفعول:

**اول مستقيم مفعول**: په پښتو ژبه کې مستقيم مفعول ته نژدې مفعول هم وايي ځکه چې د فعل اثرورباندې بې له کومې واسطې شوی وي[1] مفعول هغه اسمي توکی دی چې له فعل سره

---

[1] پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامره دويم وك کابل، کابل د معارف مطبعه 1370 لمريز کال.

نيغه او مستقيمه رابطه ولري او دغه توکی په ارتباطی حالت کې نه وي راغلی. مستقيم (نږدې) مفعول د متعدي فعلونو سره تل فعل ته نږدې اړيکي ساتي. مستقيم مفعول کومه خاصه نښه نه لري مګر د فعل د ګردان له مخې او د جملې له ترتيب څخه پېژندل کيږي.

په پښتو ژبه کې مستقيم مفعول په اصلي حالت کې راځي کوم بل خاص صورت نه لري يوازې د (زه- ته) ضميرونه که د متعدي فعل په حال زمانه کې د مفعول په توګه راشي نو په غير اصلي حالت سره راځي. لکه: ته ماوينې، زه تاوينم، دی تاويني، دی ماويني).

ددغه ډول مفعول مثالونه په لاندې جملو کې ښيو:

1- پښتونه! پورته شه قامونو کې خپل قام پورته کړه.

2- دراڼيو غږ به ټيټ کړم، لکه چې دوړې راغلې، زه به کړکۍ هم وترم.

3- اوس ته غوږ ونيسه.

په دغو جملو کې خپل قام، دراڼيو غږ، کړکۍ، غوږ مستقيم مفعول دي او د فعل سره نږدې راغلي دي.

يادونه: په متعدي مجهولو فعلونو کې چې فاعل نشته، مفعول د فاعل په ځای د مسند اليه وظيفه لري. غونډه کيږي، د کورغل نه نيول کيږي.

اوس به په لاندې جملو کې د کلام اجزاوې (ساده، مرکب) د نږدې مفعول په توګه وګورو:

الف: ساده يا يو توکيز کلمات:

1- نوم (مفرد مذکر) د مفعول د په توګه:

زه کتاب لولم. ملالۍ کميس وګانډه، غل غل پېژني.

نوم (جمع مذکر) د مفعول په توګه : مليار ګلان وکرل. هغوي فکرونه په ځای کړل.

2- نوم (مفردمونث) د مفعول په توګه: دې سترګه پټه کړه. هغه منه وخوره.

نوم (جمع مونث) د مفعول په توګه: دوي پرواقعيت باندې سترګې پټې کړلې.

3- ضمير د مفعول په توګه: (1) -ده زه وليدم. زه دی وينم. خلك مونږ پېژني. دوي تاسې مېلمانه کوي. دوي مونږويني.

په مغيره حالت کې: دی ماخبروي، دی تا خبروي. دلته زه، دی، مونږ، تاسی، ما، تا شخصي ضميرونه دي د مفعول په توګه.

2- ملالی دا اخلي. دغه کتاب واخله او هغه ولوله. دوي هو غه خلك نه پېژني (دا، هغه، هوغه) اشاري ضميرونه د مفعول په توګه ذکر شوي دي.
3- استفهامی ضميرونه د مفعول په توګه: ته څه اخلې؟ ته څوك غواړې؟ څوك وينې؟ تا څه وليدل؟ اشاره هم دشي او هم د شخص لپاره راځي:
ستا څوك په کار دي؟ ستا کوم خوښيږي؟ ستا څومه په کارده؟ ستا کومه خوښيږي؟ په پورتنيو مثالونو کې څه، څوك، څومره، څووم، کوم د پوښتنې ضميرونه دي د مفعول په توګه.
4- ټاکلي ضميرونه: ماټول وليدل. دی ټول ويني.
ناټاکلي ضميرونه: زه هيڅ نه وينم. ځيني وينم او ځيني نه وينم.
5- چې مفعول يې اداتي ضمير وي: دغه چوکۍ واخله او هلته يې کيږده. ته يې وينې. دی يې ګوري. هغه دې بيايي. دوي موخبروي.
يادونه: دلته وينو چې اداتي متصل ضميرونه يوازې د اوسنۍ زماني په افعالو کې مفعولي حالت لري مګر په ماضيه فعلونو کې مفعول نه بلکې د فاعل په توګه راځي لکه (زه دې وپېژندم) دی يې وليد. زه مو خبر کړم.
6- صفت د مفعول په توګه : زه رنځور وينم. وږي يې بوت. زاړه يې لرې کړل. کاږه يې سم کړل. طبيب ناروغ وليد. يا ناروغان وليدل.
7- عدد د مفعول په توګه: ما يو وليد. يويې راووست. دوه يې مړه کړل، درې يې ونيول. څلوريې په تنګ کړل. دويم دريېم يې وغوښت.
8- فاعلي صفت د مفعول په توګه: زه ليکوونکی وينم چې ليکنه کوي.
9- مصدر (فعلی نوم) د مفعول په توګه: دی ځنګله ته تلل غواړي. دی ډېر لوستل کوي.
ب: مستقيم مفعول د يو ترکيب په توګه:
1- سيلانيانو د افغانستان غرونه وليدل. ګلالۍ د جاموغوټه پر سرايښې ده.
د افغانستان راتلونکی زمونږ په فعاليت او لياقت پورې اړه لري.
2- ملالۍ تور قلم وموند. مليار ښکلي ګلونه کرلي دي. شاعران ښه ښه خوبونه ويني.
هغه خپلې ټولې زده کړې پای ته ورسولې.
3- کليد افغاني د خوشحال خټك د ديوان څخه پنځه لس غزلې، يوه رباعي او اوه قصيدې رااخيستې دي او د کتاب په وروستنۍ برخه کې يې هم دوه شعرونه رانقل کړي دي.

4- هلته به ولاړ شو هر څوك به ووينو. مونږ هيڅ نه اخلو. اوس به بل څه وګورو. په لوړ و مثالونو کې 1- اضافی ترکیب 2- توصیفی 3- عددي 4- مبهم ترکيبونه (غونډونه) دي.

مفعول د بدلي ترکیب په توګه:

اول زړه ښه کړه ديار ښه په بوس اوکنار. دلته ديار زړه دبدل په توګه راغلی. زما ژبه نه ده اور ده ګذارونه د ټوپك کا.

5- مصدري ترکیبونه د مفعول په توګه: دی پر هر چاټبری کول نه غواړي. تیری کول لویه ګناه ده. دی حق خوړل ناروا کارګڼي. پر چا باندې سترګې سرې کول څه معنی لري. مطالعه کول ګټه لري.

6- فعلي نوم (حاصل مصدر) په ترکیبی ډول: څاروي خوراك ښبناك کوي. په همدې ترتیب مفعول د بشپړو او نابشپړو تکراري ترکيبونو په توګه هم راځي د مثال په توګه:

1- کتابونه کتابونه مې ولیکل. غرونه غرونه مې چپه کړل.

2- کورمور دې جوړ کړ که نه. غنم منم يې په ځای کړل. په دغو مثالونو کې زیات تاکید لیدل کیږي.

په همدې توګه ډیر نور مثالونه هم شته.

## دويم ډول غير مستقيم (لرې) مفعول:

په پښتو ژبه کې دغه ډول مفعول هم د کلام د بېلا بېلو اجزاو څخه په مغيره حالت کې د پیشيني او پسيني (Preposition او Postposition)سره په ارتباطي حالت کې راځي او په جمله کې د یوه نوم حالت او دریځ څرګندوي (ټاکي) زمونږ ګرامر لیکونکو (له، ته، لره) دلرې مفعول نښې ګڼلي دي. لرې مفعول د فعل سره د یوې واسطې له مخې رابطه ټینګوي. د موضوع پراخوالي له کبله مونږ د ډېرو تفصيلاتو څخه دلته تېریږو، یوازې دومره وایو چې ددغه ډول مفعول د یو اسمي مرکز حالت داداتو له مخې څرګندیږي یعنی د کوموکو موپیشینو او پسینو سره په کوم یوه نحوي حالت کې قرار لري. د بېلګې په توګه:

اسم، ضمير (ازاد مورفیم) + ته (پسینه):

1- زه تاته کتاب درکوم. 2- جرګه کلي ته ستنه شوه. بریالي ته ووایه چې ځان ساته. مونږ له کور څخه راغلو. تاسې له دوي څخه غوښتنه وکړئ. په دغو مثالونو کې تاته، کلي ته، بریالي ته، له کور څخه، له دوي څخه ارتباطی حالت کې واقع شوي دي او ددوهم مفعول په نامه نوموړی شي.

څنګه چې د جوړښت او معنا د افادې له مخې د اداتي ترکیبونو په برخه کې دغه موضوع په بشپړه توګه راوړل شوې ده نو په جملو کې ددغو ترکیبونو راوړل دومره ضروري نه بریښي. په پښتو ژبه کې د فعل د مربوطاتو او متعلقاتو په باب ویلی شو، چې دغه مربوطه برخې د فعل د پېښېدو وخت، ځاي، حالت، وضعیت، سبب، علت، ملتیا، تم ځای، پیل ځای څرګندوي، په عربي اصطلاح د مکان او زمان قیدونه مفعول فیه، د فعل مبدا او پیل ځای مفعول منه او د فعل مقصد او تم ځاي مفعول له دي. په پښتو ژبه کې مهال، ځای وضعیت او حالت د قیود و په واسطه ښودلی شي مګر نورې ټولې برخې د ارتباطي حالت سره یادیږي. په لاندني مثال کې ګورو:

د فابریکې کارګرانو پرون په فابریکه کې په تلوار له خپلې فابریکې څخه خپلو کورونو ته یو شمیر ضروري شیان راټول کړل.

په دغه جمله کې د فابریکې کارګران (فاعل مغیره حالت) پرون (د زماني قید) په فابریکې کې (مکاني قید) له خپلې فابریکې څخه (پیل ځای) په تلوار (حالتي قید) خپلو کورونوته (دفعل مقصد، سبب) یو شمیر ضروري شیان (مفعول) راټول کړل (مرکب فعل) دی.

**په پښتو ژبه کې نحوي قیدونه:** قیدونه خود فعل له مربوطاتو څخه دي او د جملې د دوهمې درجې د غړو څخه ګڼل کیږي. څنګه چې ښکاره ده. په پښتو ژبه کې په خپله اصلي قیدونه زیات شمیر نه لري خو زیات صفتونه، نومونه په ساده او هم په ترکیبي شکل سره په جمله کې دقید وظیفه ترسره کوي چې دغه کلمې د پیشینو او پسینو سره راځي. په جمله کې قیدونه په اصلي او غیر اصلي حالت سره هم راځي.

1- قید په ساده او ترکیبي ډول: الف په جمله کې د ساده قیدونو مثالونه: مسافر ډېر تږی دی. ملنګ غلی ناست دی. دی په دې برخه کې هډو نظر هم نه ښکاره کوي.

دلته (ډېر، غلی، هډو) صفات دي. د ساده (یوستوی) قیدونو په توګه وظیفه لري.

2- په جمله کې د ترکیبي قیدونو بېلګې:

الف: قید د یو پوره بشپړ تکراري ترکیب په توګه وي: دی غلې غلې خبرې کوي. دی اوس اوس راورسید. دی ژر ژر خبرې کوي.

ده ورته ځیر ځیر کتل. اوس اوس، غلی غلی، ژر ژر، ځیر ځیر سره له دې چې قیدي مطلب ورکوي خو تاکید هم دی.

ب: چې قید د یو منځني ارتباط په مرسته تکراري ترکیب وي. ادم خان او درخانۍ پټ پـه پټـه د یوبل دیدن کولو.

ج: قید له یوه نوم او پېشینې په مرسته ترکیب وي: په 1919 کې انګریزان زمونږ له هیواد څخه په تیښته وتښتیدل.

## د معنا له مخې د قید ډولونه:

1- د حالت او څرنګوالي قید: د فعل څرنګوالی او حالت ورځني ښکاره کیږي. دغـه د څه ډول، څه قسم، څنګه سوالونو ته ځواب وایي او ددغه قید مثالونه ډیر دي خو مونږ یې یـو څـو د بېلګې په توګه رااخلو:

1- درخانۍ ناڅا په له خوبه راویښه شوه.

2- دوي په خوښه کار کوي. 3- له ډیره غمه په زوره خندا کوي. 4- له بېرې سمدستي وتښتید

5- زه خوشحال کمزوري نه یم چې به ډارکړم. په ښکاره ناري وهم چې خوله یې راکړه.

چې یې تللم په خندا خندا دیدارته اوس یې درومه په ژړا ژړا مزار ته.

6- وروغوندې پرده پورته کیږي او یو څوك نا اشنا غوندې سرۍ راننوځي.

7- مونږ له تا سونه د زړه له کومې مننه کوو. 8- توریېکۍ لـه خپلې خوابښې سره پـه زوره زوره لګیا ده.

9- د سیند اوبه په کرار کرار د ځمکې تل ته لارپیدا کوي.

## 2- د درجې، اندازې (شمیر -کمیت) قید:

د فعل اندازه او درجه ښیي: ملالۍ لږه لږه ناروغه ده. مور او زوی پنځه کاله سره ونه لیدل.

مـا څـو ځلې درتـه ویلي دي چې دا ښـه کـار نـه دی یـا (څوواري). پـه دې ورځـو کـې بیخي نـه معلومیږي یا له سره نه ښکاري. دوي سره مونږ لږ لږ پیژنو: هیواد پرمونږ بې شانه ګران دی.

## 3- د سبب او علت له پاره:

دغه قیدونه هم د کلام له بېلا بېلو توکونو څخه جوړیږي تاسې په څه وجه مروریاست یـا پـه څه سبب مرور یاست.

ستاله لاسه هیڅ ارام نه کیږي.

ماشومانو ته له بېرې خوب نه ورځي.

دغه خلك په غلانیول شوي دي.

دوي یې په کنځلو له کوره ویستل.

### 4- د مقصد قید:

ددې قید څخه د خبر (فعل) هدف او مقصد څرګندیږي. د خدای د پاره راشه! ستالیدوته راغلم. ماشوم خبرو کولو ته ځان جوړ وي. دا دومره هلې ځلې ستا د پاره کوم. دلته د خدای له پاره، ستالیدو ته، خبرو کولوته، ستا د پاره، د قید دنده ترسره کوي.

**5- د شك قید:** خدای زده کله به راشي، ګوندې سبا ته راشي. لکه چې نه راځي.

**6- د تاکید قید:** ته به نن خامخا زمونږ مجلس ته راځې. دی نن په خپله راغی. دغه کالي ښه پاك ووینځه. دغه سړي سوچ لیوني دي.

### 7- د مهال (زمان) نحوي قیود:

د فعل د پېښیدو شېبه او وخت څرګندوي، د زماني قید هم د لفظ په لحاظ ساده او یا ترکیبي وي.

1- د ساده زماني قیدونو مثالونه: مونږ اوس پر خپل ځان باور لرو. دی پرون له ننګرهاره راغی. نن هر څوك خپل دوست او دښمن پېژني.

په ترکیبی توګه:

په ژمي کې د کابل هوا سړه وي. له پخوا څخه دا متل دی. تر اوسه پورې لاپریکړه نه ده شوې. یا تر ماښامه ناست وو. له هغه وخت نه تردې وخته پورې ډیر کلونه تېر شول. په یوه ورځ په یوه ساعت کې له یوې شفاخانې نه دوه جنازې راووتلې.

### قید د عطف په توګه:

مونږ شپه او ورځ کارکوو. خبره به نن او سباکې معلومه شي.

### 8- د ځای قید:

د فعل د پېښیدو ځاي (چېرته، د کوم ځاي نه، کوم ځای ته، په کوم ځای کې) حالتونه ښیي. دا هم په ساده او ترکیبی توګه راځي.

د پیل ځای او تم ځای په توګه:

1-هورې خلك ناست دي. دورې څه کیږي. بهر ساړه دي. چېرته دې ښه هلته دې شپه. په دغو مثالونو کې هورې، دورې، بهر، چیرته، هلته د ځای قیود دي.

2- په ترکیبي توګه: شاته څوك ناست دي. مخ ته مه راځه. له نژدې څخه خبرې کوي.

له کوم ځايه راغلې، تردي ځايه پورې راغلې. په الماری کې څه شيان ځای شوي دي. په کالـه کې کښينه، د سيند په غاړه يوه کښتۍ وه.

د ځاي قيد د يوتکراري ترکيب په توګه وي:

1- ځاي پر ځاي ودريږه 2- کلي په کلي وګرځيد 3- حجره په حجره ګرځي 4- کوراکور خلك خبر شول.

په پښتو ژبه کې دوه يا زيات څو قيدونه د يوه **فعل** تابع وي او يوې ټاکلې پوښتنې ته ځواب ورکوي. دغه وروسته جملې د مثال په توګه ګورو:

په ډېره مينه په ډيره تلو سه په بيړه بيړه يې ځانونه د ګلونو د خنديدو تماشې ته راورسول. دنوي کال استازی او د نوي ژوند قاصد په ډير د رزاو د روز داکسوس په غاړو، د ښايسته بلخ په ورشو، د هري رود په څنډو، دغور په غوړې مرغې، د بست په لرغونو مېنو، د هلمند په ګل کڅونو، د کندهار او کابل په دربارونو، د غزني په يادګارونو، د پکتيا په زړو درو، د بولان او ګومل په تاريخي درو، د کسي غره او سپين غره په څوکو، د خيبر او تاترې په ترو، د سوات او بنير په سردرو، د باګرام په باغ وبڼ، د چترال او ګلګيت په ځنګلونو، د بستي او ګواد رپه بندرونو کښته پورته وګرځيد.

په دغو جملو کې ګورو چې (په ډير درزاو د روز) د حالتي قيد ښودنه ده او نور ټول د ځاي قيدونه په پرله پسې توګه راغلي دي. د هر قيد ترمنځ يو عطفي رابطه او اضافی رابطه ليدل کيږي. په پښتو ژبه کې دغه ډول متعد د قيدونه زيات مروج دي.

# څلورم څپرکی

## په پښتو ژبه کې د جملو خصوصیات (ځانګړتیاوې)

د ژبې د ژبنیو فورمونو د مطالعې او څېړنې څخه داسې نتیجه ترلاسه کیږي چې د پښتو ژبې په جملو کې د جوړښت او ساختمان دوه ډوله ځانګړتیاوې شته دي. دغه دواړه برخې (عروضي او نحوي) په لاندې کرښوکې بیانول غواړو:

لومړی: د عروضي جنبې په باب څرګندونه:

څرګنده ده چې داکثرو ژبو په تېره بیا د پښتو ژبې عروضي، نحوي (سینتکسي) څېړنې تر اوسه پوره بشپړې شوي نه دي ځکه چې تر اوسه پورې څېړونکو ژبه درسم الخط (لیک) په اساس تجزیه کړې ده، خو په ډیرو ژبو کې او په پښتو ژبه کې ځیني داسې نحوي عناصر شته چې یوازې په تلفظ (وینا) کې څرګندیږي او په لیک کې نه څرګندیږي. له دغو څخه د خج، اهنګ، الحاق پیوستون، بیلتون (وصل او فصل) عناصر دي. د پښتو ژبې دغه عروضي برخې ته کومه خاصه پاملرنه نه ده شوی، په تېره بیا د اهنګ (Intonation)، فصل او وصل موضوع پوره روښانه څېړل شوې نه ده، مګر د خج و په باب په ډیرو ګرامرونو کې او یا په ځانګړي توګه خواره واره مواد لیدل کیږي، چې د هغو له ډلو څخه د پوهاند رښتین (د پښتو ګرامر 1327 لومړی ټوك (12 مخ) کې د خج د اهمیت او په کلمو کې د معنا وو د بدلون په باب څرګندونې شوې دي. د دروند او سپك خج یادونه یې هم کړې ده. همدارنګه محمد ګل مومند (د پښتو ژبې لیاره) کې د خج یادونه یې هم کړې ده. د زیاتو معلوماتو له پاره د همدغه اثر (18-19-20) مخونه وګورئ.

د پښتو ژبې خج په باره کې څېړنه د ډاکتر بیچکا لیکنه ده، چې ترجمه یې د 1348 کال (د کابل مجلی په (2-3) ګڼو کې چاپ شوې او د پښتو ژبې د ځینو فعلونو او ترکیبي کلمو د خج په باب ځیني ژبپوهنیز پرنسیبونه وړاندې کړي دي. د زیات تفصیل له پاره همدغه مقاله وګورئ.

(خج یا فشار د پښتو په ژبه کې) د 1346کال د کابل مجلې (10) ګڼه چاپ د معلوماتو د پاره وګورئ. همدارنګه دلته به د موضوع په اړه د لغوي خج او فونیم (غږیزواحد) په باب څه ضروري څرګندونې وړاندې کول بې ځایه نه ګڼو.

د پښتو ژبې ټول غږونه د غږیز سیستم له پلوه پر دوو برخو بېلیږي:

يوې ته كتاريز او بلې ته سر كتاريز) وايي. كابل مجله 1355 كال لومړۍ ګڼه) او يا د كتاريز او غير كتاريز په نومو سره ء يادېږي.

پــه انګليـــسي، روســي ژبــو كــې كتـــاريز غــږونو (فونيمونــو) تــه Segmental او غيــر كتـــاريز غږونوته (Suprasegmental Phonemes) وايي.

پوهاند رحيم الهـام د دري ژبې د فونيمونـو د تشريح په برخه كې د سيګمينټ Segment د پاره (مقطعهء) او سوپر سېګمېټ (Supra Segment) د پاره عروضـي اصطلاحات وضع كړي دي. كوم اصطلاحات چې ښاغلي پوهاند الهام د ژبپوهنې د پورتنيو اصطلاحاتو له پاره ټاكلي دي. پوره سمون كولى شي. څنګه چې د پښتـو ژبـې ددغـو اصطلاحګانو دپاره كومـه خاصـه نومونـه نـه لرونو د استعمال په ځينو برخو كې بـه د نومـوړو اصطلاحګانو څخه ګټـه اخيـستل هم بـې ځايـه نـه وي.

كه مونږ د پښتو ژبي (كتاريز يا غير كتاريز) اصطلاحات د انګليسي ژبې سره پرتله كړونو كټ مټ يو ډول مفاهيم افاده كوي. د پښتـو ژبـې ټول واولونـه او كانـسو نينټيونـه كتـاريز غـږيز واحدونـه (فونيمونـه) دي. مګـر غيـر كتـاريز (سـوپر سـيګمېنت) غږونـه (خـج، اهـنګك، لحـن) غـږيز واحدونـه (فونيمونه) نـه دي. د خج د څېړنې پـه برخه كـې د ژبپوهـانو تـرمنځ د نظرونو ښېلوالى ليـدل كيـږي. ځيني پوهـان خج فـونيم ګڼي مګر ځيني بيا خج د فونيمونو پـه ډلـه كې نـه ګڼي. د دواړو نظريـو خاوندان ځيني ذهنى اوعيني دلايل هم وړاندې كوي. مونږ دلته دغه قضاوت چې خج (فـونيم) ونـه ګڼل شي د يو څه منطقى استدلال سره سم دواقعيت څخه لرې نه ګڼو د موضوع د تائيد لپاره ګورو:

فونيم هغه غږيز واحد (ټوك) دى چې:

1- نه تجزيه كيدونكى دى 2- خپلواك دى (د مقايسې له پلوه) 3- سيګمېنټ كتـاريز (مقطعـي) دى 4- بالقوه د معنا سره ارتباط لري. 5- د معنا لرونكو ژبنيو واحدونو (مورفيم، كلمه) غږيزه بڼه جوړ وي. 6- معنا لرونكي ژبني واحدونه سره بېلوي 7- ټول غړي (الوفونونه) يې په صـــوتي لحاظ غږيز

**يادونه: سيـ مينت تعريف او سوپر سيـ مينـ په باپ معلومات په لاندې ماخذونو كـ شته.**

1- **ل. ل. بولانين، د ننة روسي ژبـ فونولوژي (فنيتيـ ا) د عالي وونـ ي خپرونه، مسكو** 1970.

2- **د اوسنة روسي ژبـ رامر، د علومو خپرونه، مسكو،** 1970 **د.د ن. يو شويدووه په مسئوليت اولار وونه.**

مشابهت سره لري مګر خج دغه ټولې ځانګړتياوې نه لري، يوازې د كلمو د معنا په تغير او د غږيزې بڼې په توپير كې رول لري. د خج او فونيم يوبل څرګند او جوت توپير دادى چې خج د غږيز

سیستم یو مستقل عنصر دی، بلکې د فونیمونو ٔ(غږیز واحدونو) یو داسې ځرګندونه یا خصوصیت دی چې د یوې کلمې په څپه یز جوړښت کې جوتیږي.

مثلا: د پښتو ژبې دغه کلمه (ښکاري) د فونیم له نظره (ښ، ك، ا ، ر، ي) برخی دي. ولې په همدې فونیم کې یو ټاکلي غږ یا خج چې پر لومړۍ یادوهمې څپې کې ښکاره کیږي. لکه د (ښکاري) په کلمه کې چې خج پر لومړۍ څپې وي نو فعل حال دی یعنی دلیدل کیږي یا ځرګندیږي په معنا ، ولې په دوهمې څپې باندې خج د نوم حیثیت لري یعنی ښکارکوونکی. همداسی نور مثالونه.

اوس چې د سېګمینټ او سوپر سیګمنټ په معنا پوه شو نو راګرځو خپلې موضوع ته. دلته داهم باید وویل شي چې د عروضي جنبو په باب د خج، اهنګ او الحاق په نومونو سره ځرګندونې او څېړنې شته دی. پنزل په پښتو ژبه کې درې ډوله خجونه (دروند ، منځنی متوسط) او سپك) او درې ډوله اهنګونه (جګ، منځنی، کښتنی) ښودلي دي او همدرانګه وایي چې ښایي درې ډوله الحاق (خلاص Open) جزیي (فاصلوي Hyphen) او پوره (التصاقی Close و مومو او ورپسې د خج او فونیمي تغییر، دافګسونو خج، د خج تغییرات سره د مثالونو ښودلي دي. وروسته تردې د جملو د خج او اهنګ په باپ د ترکیبونو د الحاق په برخه کې توضیحات ورکړي دي او د عروضي جنبې اولیك دود په باب څه خبرې هم شته دي، چې مونږ یې د موضوع د اوږدوالي له کبله ورنه تیریږو. همدارنګه ډاکتر زیار د خبري جملو د پاره ولیدونکی او سوالي جملو لپاره جګیدونکی اهنګ په ګوته کوي مګر خج یې بیا په دریو ډولو په دودیز ډول بېل کړی دی، چې د جملوي، لغوي هجایي په نومو سره یې نومولی. خو دلته څه غورهم په کار دی. ځکه دا خبره باید له یاده ونه باسو چې په جمله کې پر کلمو باندې د خج دریځ د جملو د اهنګ ټاکونکی هم وي.

خج معمولا په کلمو کې او د کلمو په ساختمانونو کې برخه لري د ژبې د صرفي ساختمان سره هم اړیکي ټینګوي او په جملو کې د جملوي فشار په توګه وظیفه ترسره کوي. په دې ترتیب سره اهنګ له اوږدو ساختمانو یعنی جملو، فقرو سره تړون او ارتباط لري او د هغوي د نحوي معنا ګانو ټاکونکی وي.

اهنګ په پښتو جملو کې ژبنی ارزښت لري. څنګه چې لیدل کیږي تر اوسه پورې په پښتو یا فارسي ژبو کې د اهنګ ډولونه درې یا (څلور) معیارونه په ګوته شوي دي. لکه خورا جګ اهنګ، جګ اهنګ، منځنی اهنګ او ټیټ اهنګ. د موضوع دروښانتیاله پاره یوه داسې جمله راوړو:

1- تورپیکۍ راغله. 2- تورپیکۍ راغله.

3- تورپیکۍ راغله! 4- تورپیکۍ! راغله.

په پورتنيو جملو کې ترتيب او تشکيلوونکي اجزاوې کټ مټ سره يودي پرته له ځلورمې جملې څخه، ولې د اهنګونو له مخې معنوي بېلوالى يې پيژندل کيږي.
د نحوي تجزيې له مخې زمونږ پورتني مثالونه يعنى هره يوه جمله چې (معنوي توپير سره لري) درې تشکيلوونکي برخې لريز دوې برخې يې په ليك کې څرګندې دي لکه:
توريپيکۍ راغله. دغه جمله په اسمي او فعلي برخو سره بېليږي چې او له برخه د جملې فاعل (مسند اليه) او دوهمه برخه يې فعل (مسند) دی. دريمه برخه يې په ليك کې نه انځوريږي په دې حساب بېل بېل اهنګونه په دغو جملو کې د ځلورو جملو معنا ټاکي يعنى د اهنګ توپير د جملې معنوي نوعيت سبب ګرځي.
په دې توګه غواړو د پښتو ژبې د جملو عروضي ځانګړنې په جلا توګه په ګوته کړو.
اول: د پښتو ژبې دجملو عروضى خصوصيات:
د يوې جملې د ساختمان او جوړښت په خبر نه او مطالعه کې دغه لاندې عروضي نښې نښانې سره بيلول غواړو:
الف: اهنګ: په ژبه کې اهنګ دا وازد ټيټېدو او لوړيدو يو ډول زيروبم دی. په پښتو ژبه کې د نورو ډيرو ژبو په څېر داهنګ مفهوم خاص ارزښت لري ځکه هره ژبه د جملې او نورو غونډونو يو خاص اهنګ لري. د اهنګ بدلون او توپير د جملې د معنا د بدلون سبب ګرځي. که څه هم د جملې جوړښت، فورم (شکل) به بدلون نه وي مونډلى خو همدغه اهنګ دی چې په دغه ډول جملو کې خبري او نا خبري جملې سره بيلوي.
د اهنګ د بدلون له مخې جملې د معنا له مخې په خبري، سواليه، تعجبي، ندايي باندې ويشل کيږي[1].
که چېرې جملې د ليك د نښو له مخې بيلې کړاى شي نو دا به يوه نيمګړې هڅه وي. د جملې د ډولونو ويش د معنا له مخې د عروضي خصوصياتو له مخې کيږي. خوله بده مرغه په پښتو ژبه کې دغه عروضي برخه پوره او علمي نه ده څېړل شوې که کومې ويشنې شوي دي هغه هم اټکلي خبره ده مګر دغه کار به هغه وخت بشپړ او باوري وي چې لابراتواري ازموينه د جملو د عروضي ځانګړنې (اهنګ، فشار) په برخه کې ترسره شي. که د پښتو ژبې جملې (بشپړې او نابشپړې)

---

[1] ولوانوه. ل. زما يانکوايا. س. الف د خارجى محصلينو د پاره د ژبپوهنه درسي کتاب، د مسکو پوهنتون چاپخانه، 1973، (36-41) مخونه.

داهنګك له مخې وخېړلې شي نو د جملې ډېر ډولونه به هم څرګند شي خو دلته مونږ څه نا څه په دوديز ډول خبري، سوالي، تعجبي، ندايي او امري جملې د څپلواهنګو نو په مرسته بيلوو. مونږ دغه مطلب د پوهاند الهام له روش جديد در تحقيق د ستور زبان دري) څخه راوړی دی.

1- خبري اهنګك: اوار پيل کيږي او بيالې کښته (پروت) پای ته رسيږي. البته وليدونکی نرم اهنګك دی او په يو منځني لحن سره ويل کيږي.

نوټ: ددې لپاره چې د نورو جملو ترمنځ بېلوالی موښودلی وي نو د خبري جملې د اهنګك د پاره Intonation=I نښه راوړو ويا IC=1 فورم ورته ټاکو. په دې مانا:

I د Intonation لنډيز او (C) د Construction لنډيز په توګه:

مثال يې : عمومي ښه، خبري جمله: IC –1



پسرلی د څپلو خوږو وږمو سره راورسيد. د ګلانو سرونه وږمو ورو ورو او په خيال سره ښورول.

2- د پوښتنې اهنګك: په هغه صورت کې چې په جمله کې د پوښتنې کلمې ولرونو ددغه ډول جملې اهنګك لوړبيا ټيټ وي په دې توګه يې پيژنو:

IC- 2



مثال:

چېرته تاسی روان ياست؟ څوك ستاسی پوښتنې ته راغلی و؟

بل په هغو جملو کې چې استفهاميه کلمه نه وي نو په دغه ډول جملو کې اهنګك ټيټ پيل کيږي او بيا نيغ پروت لوړ پاي ته رسيږي. لکه: تاسی دلته هره ورځ راځی؟ تاسی له مونږ سره خبرې کوئ؟



همدارنګه په داسې جملو کې چې د سوال او ځواب په توګه وي هم يو بل ډول اهنګ چې IC –4 په توګه راغلی دی. اهنګ په پای کې لوړيږي.



مثال:

مېله خلاصه شوه مونږ کورونو ته ولاړ واوتاسې؟

يادونه: هغه استفهاميه جملې چې ځواب يې هويانه وي اهنګ يې جيګېدونکی وي او د نـورو استفهاميه جملو اهنګ په هغه برخه کې لوړيږي چې مطلوبه ځواب غوښتل شوی وي.

3- د تعجبي جملې اهنګ: هم ټيټ پيل کيږي او بيا پورته مخ په ځوړ پای ته رسيږي مګر کله داسې هم پېښېږي چې لوړ پيل پريوتی پای ته رسيږي چې دا بيا د جملې د مطلب په ټکي پورې اړه لري.

1- څه کارونه يې ونه کړل! 2- داهم شوه خبره! 3- ته هم لادومره شوې!! 4- دې ته لاګوره!

## ب: په پښتو ژبه کې خج:

هره ژبه د خج ځانګړی سيستم لري او په هرې ژبې کې د خج دريځ پـه کلمـه (لغـت) او جملـه کې يو له بله توپير لري. خج په بېلا بېلو ژبو کې بېلا بېلې ځانګړتياوې لري. د ژبپوهانو په نظر په نړۍ کې داسې ژبې هم شته چې خج يا لغوي خج نه لري مګر داسې نـورې ژبې دي چې خج لرونکې وي دغه خج لرونکي عناصر د ځانګړو خصوصيتونو او موقعيتونو له مخې سره تـوپير هم لـري. د نـړۍ په ځينو ژبو کې لغوي خج يو معين او ټاکلی ځای لري خو په ځينو نـورو ژبـو کې بيـا د موقعيت او ځای له مخې متحرک (خوځند) دی.

په پښتو ژبه کې هره کلمه (مورفيم) ځانته ټاکلی خج لري خو دا هم بايد زياتـه کـړو چې د ټولـو کلمو د خج موقعيت يو ډول نه دی په ځينو کلمو کې پر لومړی څپې لکه (وسپنه، ګټه) په ځينو کې

پرمنځنۍ څپې (لوړوالی، مغلواله، پښتنواله) او بیا کله د ځینو کلیمو پرورستنۍ څپې لکه (ګټه، تللی وو) خج راځي بیا ځیني کلمې هم شته چې د هغو خج تغییر نه کوي لکه:

ختګر، ختګره، (ښځه، ښځې، ښځو).

په وینا کې خج لرونکې څپه د بې خجه څپې څخه په دې لاندنیو خصوصیاتو سره جلا کیږي.

1- فشار 2- د اهنګ جګوالی 3- اوږدوالی. د خجنې څپې دغه ځانګړتیاوي په بیلو ژبو کې سره توپیر لري.

دلته زمونږ مقصد د پښتو ژبې خجن عناصر دي، په دې توګه دغه خجن عناصر (څپې) په عمومي توګه دوې څرګندې ځانګړتیاوې لري.

1- خجنه څپه نسبت بې خجه څپې ته په زیات فشار سره ویل کیږي. 2- خجنه څپه نسبت بې خجه څپې ته اوږده ویل کیږي. ددې علت دادی چې په پښتو ژبه کې هغه واول چې خج لرونکې څپې کې راغلی وي نسبت هغه واول ته چې په بې خجه څپې کې وي اوږدویل کیږي.

په همدې اساس په پښتو ژبه کې دنیا میکي خج موجود دی چې پر نورو عواملو سربېره د اهنګ او د غږ د اوږدوالي سره مستقیم ارتباط لري. په دې توګه خج په پښتو ژبـــه کې دوه څرګند خصوصیتونه لري یعنی پرکومې څپې چې خج راغلی وي هغه نظر بې خجه څپې ته اوږد او هم یې فشار زیات وي. څنګه چې د خج دریځ د پښتو ژبې په کلمو کې متحرك (خوځند) دی نو د پښتو ژبې په لغوي او ګرامري جوړښت کې ډیر ارزښت لري، یعنی خج په جمله کې د خپل اهمیت له مخې هم څو ډوله دی (منطقی، لغوي او د جملې خج) دغه د خج موقعیت د کلمې په معنا او مقصد باندې هم ډیره اغیزه کوي او د خج د موقعیت په اساس کلمې (الفاظ) (اسمي- فعلي) او نورو سره بېلېږي. ددې له پاره دغه لاندې مثالونه راوړو:

1- (جاله) (خج پرلومړۍ څپې) ځاله، اشیانه.

---

**یادونه: په داسې حالتونو کې چې هلته خج بدلون مومی معمولا د ګرامري صیغو د جوړښت د بشپړونکو او مرستیالو وسیلو په حیث کارول کیږي اخیستل کیږي لکه: پلار، پلرونه او کله کله د دوو ګرامري صیغو ترمنځ یوازینۍ توپیر داوي چې د خج په واسطه یو له بله وپیژندل شي لکه (ګ ینه) خج پر لومړۍ یادوهم څپې باندې ولاړ یني او تونکي مورفیمونه هم کله کله خجه نه وي لکه د جمع لاحقې (ان، ونه) او فعلي لاحقه (وو).**

2- (جاله) (خج پر دوهمې (وروستۍ څپې) داوبو جاله.

3- (بوره)، (خج په لومړۍ څپې) زوی مړې

4- (بوره) (خج پر وروستۍ څپې) (خوږه) (قند).

ښکاري- (خج پرلومړۍ څپې) **فعل** = لیدل کیږي. څرګندیږي، **معلومیږي**.
ښکاري، (خج په وروستۍ څپې) نوم = ښکار کوونکی. (فاعلی صفت)
تېره – (پر لومړۍ څپې) ماضي (تیره زمانه).
تېره (پر وروستۍ څپې) د پڅ ضد = تېز
جوړه – (پر لومړۍ څپې) سوله، روغه
جوړه- (په وروستۍ څپې) جفت، جامې، دناوې جوړه.
2- د خج د موقعیت په اساس دځینو کلمو ګرامري معناګانې ټاکل کیږي.
ننوتل- (خج پر وروستۍ څپه) (استمراری) **جمع عدد ماضی فعل**
ننوتل – (خج پر لومړۍ څپې) (**مطلق جمع عدد ماضی فعل**).
ننوت: (خج پر وروستۍ څپې) استمراري ماضي مفرد دریم شخص):
ننوت: (خج پر لومړۍ څپې) مطلقه ماضي مفرد دریم شخص.
که څه هم فشار په کلمو او د کلمو په ساختمانونو کې راځي یعنی یوه کلمه ممکن څو هجاوې ولري مګر ټول سیلابونه یو ډول نه ویل کیږي په دې معنا چې ددغو سیلابونو له ډلې څخه یو سیلاب نظر نوروته دروند ویل کیږي. دغه برخه د خج لرونکي هجا په نامه نومول کیږي. یعنی په دغه هیجا باندې فشار راوړل کیږي خو د کلمې نورې هجاوې کمزوری. او لنډې ویل کیږي. همدارنګه خج په جملو کې هم اغیزه ښندي یعنی که دجملې پریوه توکي باندې زیات فشار راشي هماغه توکی خجن کیږي او نور توکونه به یې بې خجه او یا کمزوري خجونه ولري.
دغه خجن توکي د نورو توکونو څخه زیات د مطلب ټکي بیانوي. د مثال په توګه.
زه کورته ځم. یا مالیك ولیکه.
په دې جملو کې که چېرې خج په (زه) – (ما) ضمیرونو باندې چې د جملې فاعل هم دی راشي نو دلته مونږ سمدلاسه پوهیږو چې جمله د څوك او چا استفهامي ضمیرونو په مرسته سوالیه کیږي او یا برعکس که جمله د څوك او چاپه مرسته سوالیه شي نومونږ پوهیږو چې په ځواب کې جملوي فشار د جملو د نورو برخو څخه (1) – په (زه) (2) – پر (ما) باندې زیات دی.
مګر که چېرې جمله د چېرې، چېرته یا څه او یا داسې نورو ژبنیو فورمونو په واسطه سوالیه شي. نو پوهیږو چې په ځواب کې جملوي فشار پر (کور) (لیك) باندې راځي او یا که فشار په خبري جملو (زه کورته ځم) یا مالیك ولیکه) کې د (کور) او (لیك) باندې زیات وي نوسوالیه جمله د

(چیري- څه) او داسې نورو فورمونو په ذریعه سوالیه کیږي. ولې که فشار پر (ځم) او (ولیکه) فعلونو باندې زیات وي نو په ځواب کې هم فشار په دغه برخه باندې راځي. یا دا بل مثال: پسرلی راغی.

که فشار پر (پسرلي) راشي دویونکي مقصد د پسرلي څخه دی او که پر (راغی) باندې وي بیانو د پسرلي د راتګ مفهوم زیات ارزښت لري او پسرلي ته دویمه درجه ارزښت ورکول کیږي. همدغه راز په سوالیه، تعجبي، امري جملو کې دغه قاعده د تطبیق وړ ده.

## ج: بیلتون او پیوستون (فصل او وصل):

بیلتون یا وقفه په ترکیب (غونډ) او جمله کې د لفظي او نحوي ډلو (کلمو، ترکیبونو) د بېلولو له پاره راځي او همدارنګه د بېلتون (وقفې) له مخې د جملو په پای کې یوه جمله له بلې نه جلا کیږي.

پیوستون یا اتصال: په ترکیبونو او جملو کې د مربوطه اجزاو ترمنځ الحاق او پیوستون ګڼل کیږي. په دې معنا سره چې دلته مقصد د کلمو، عبارتونو او جملو په برخه کې دوینا اصلي اوسمه بڼه ده په کومو کلمو، ترکیبونو یا جملو کې د بیلتون یا پیوستون ضرورت لیدل کیږي. دلته که د دووتوکونو (کلمو، غونډونو، جملو) پاي او پیل سره یو ځاي جوخت وویل شي یوه معنا او که بیل او جلا یعنی په یو څه ځنډ سره وویل شي، نو مطلب بدلیږي، دلته باید دا په نظر کې ونیول شي چې مطلب او مقصد په نوموړي، جملې او یا ترکیب کې څه شی دی او یا خو په ځینو ځایونو کې ددغو عناصرو معنا ګډوډه کیږي یا خو پوره او سم مطلب په لاس نه راځي. ددې مطلب د روښانولو له پاره د پښتو ژبې یو څو مثالونه راوړو. په دې لاندنیو جملو کې بېلتون او پیوستون په ښه توګه روښانه کیږي.

1- بریالی حیران، ناست دی.
2- نورګل زړور، ورغی.
3- سورګل ستومان، راغی.
4- نور محمد غمجن، لاړ.

په دغو جملو کې که چېرې حیران، زړور، ستومان، غمجن د جملې د مسند الیه له متعلقاتو څخه وي نوپاتې برخه یې (ناست دي، ورغی، راغی، لاړ) د جملو (مسند) فعلونه دي.

همدارنګه یو بل مثال:

فریـــاد فریـــادي لاړ لـــه دنیـــا نـــه ارمـــاني
د مـــرګ قاصـــد تـــه ګـــوره راځـــي ناګهانـــه

د لومړي بیت مطلب د مخکنیو جملو په ترتیب سره پیوستون او بیلتون په توګه لولو لکه:

فریاد فریادي، فریاد، فریادي مګر په دوهم بیت کې د مرګ قاصد تـه ګوره راځي ناګهانـه، پـه اصل کې داسې لوستل کیږي. د مرګ قاصد ته یعنی وقفه (مکث) وروسته لـه (تـه) څخه، مګر کـه (ته) ارتباطی توری د قاصد د کلمې سره پیوست ونه ویل شي او څه پـه ځنډ سره وویـل شـي نـو بیـا پورتنی مطلب له لاسه ورکوي. (ته) بیا د دویـم شخص ضـمیر پـه توګه مفهـوم ورکـوي چـې د مطلب تړکی نه دی لکه د مرګ قاصد ته ګوره راځي ناګهانه.

بله نمونه: دازمانه، حیانه کوي.

بیلتون: دا زما- نه حیانه کوي (نفی، له ما څخه) مطلب دی، پیوسـتون: دا زمانـه) حیانـه کـوي. دلته (زمانه مقصد وخت او نوم دی).

په لاندې مثال کې دوه مشترك تکراري الفاظ وینو:

1- سورګل، حیران حیران کتل.

بیلتون په لومړي سرکې (سورګل) څخه وروسته یو څه ځند خامخا راځي چې حیـران حیـران کتـل د فعل قید په تکراري توګه ښیي او د فعل له پاره پیوستون ګڼل کیږي. د فاعل سره د پیوسـتون لـه پاره سورګل حیران، حیران کتل.

چې دلته سورګل حیران نه وروسته څه وقفه راشي نو لومړی حیـران د نـوم (فاعـل) مربوطـه برخـه جوړوي او دوهم حیران د فعل سره اړیکي لري. خو که چېرې د فاعل سره جوخت ونه ویل شي نو بیا به داسې معنا ښندي.

1- بریالی، حیران ناست دی 2- نورګل- زړور راغی 3- سورګل، ستومان راغی 4- نورمحمد، غمجن لاړ.

په دې ترتیب حیران، زړور، ستومان- غمجن د فعل د مربوطاتو څخه دی یعنی د جملې دفعل سره یې فعلي ترکیبونه جوړ کړي او قیدي معناګانې ښندي یعنی دغه صفتونه د قید په توګه وظیفه ترسره کوي. یادغه لاندې ترکیبونه په جمله کې ګورو.

د زړه سـوي اهونـه یـې لـه خولې نـه پورتـه کیـږي. پـه دغـه جملـه کې دوه ځایـه د فصـل او وصـل مثالونه وینو:

اول: دجملې مبتدا (د زړه سوي اهونه) که د زړه سوي نه وروسته لږ څه مکث وکړای شي او وړيسي (اهونه) وويل شي نو دغه د اضافي ترکيب په توګه د لسوزي (زړه سوي) په مفهوم د يوه مجرد نوم معنا او مفهوم رسوي چې په دغه ترکيب کې (زړه سوی) مضاف اليه او اهونه مضاف ګڼل کيږي. خو که چيرې دا ډول ويل شي: د زړه، سوي اهونه نو دلته بيا (زړه) مضاف اليه او سوي اهونه (توصيفی ترکيب) مضاف دی چې په منطقي لحاظ د زړه، سوي اهونه سم برېښي.

دويم ددغه جملې د خبر برخه هم ګورو.

1- له خولې نه، پورته کيږي او که بيا دغه فعلي برخه (مسند) داسي ولولو: (له خولې، نه پورته کيږي) دلته بيا منفی فعل څرګنديږي چې البته مطلب د نفي صورت نه دی.

## دويم: په پښتو ژبه کې دجملې نحوي خصوصيتونه (ځانګړتياوي):

څنګه چې ښکاره ده هر ډول کلمې او مورفيمونه په جلا او پرته له ارتباطه پوره او بشپړه معنا نه ورکوي نو په دې توګه هر ترکيب ته (غونډ- جمله) پرته له نحوي ځانګړنې (خصوصياتو) څخه جمله نه شوو يلای مګر هغه الفاظ او مورفيمونه او (غونډونه) چې يو بل سره نحوي رابطه ولري جمله، ترکيب، غونډ ورته ويلی شو.

دلته مونږ په جملو کې د کلمو، مورفيمو، (اسمي، فعلي) غونډونو ترمنځ نحوي رابطه په لاندې توګه بيانوو:

### الف: مطابقت (سمون):

د مطابقت معنا هغه ده چې په ترکيبونو کې (1) د کلمو ترمنځ او په جمله کې د جملې د اجزاو يا غونډونو (اسمي- فعلي) ترمنځ ګرامري مطابقت موجود وي دغه مطابقت او سمون د جملې د فاعل او فعل يا مبتدا او خبر ترمنځ د عدد، جنس او شخص له مخې په نظر کې نيول کيږي.

### د عدد له پلوه مطابقت:

هغه وي چې دجملې ارکان (اجزا) د عدد (مفرد، جمع) له مخې سره سمون ولري. که چېرې د جملې د مبتدا فاعل برخه (مفرد) يووي يا (جمع) ډير کسان وي نو د خبر (فعل) برخه هم ورسره د مفرد يا جمع په شکل راوړل کيږي.

### د جنس له پلوه سمون او مطابقت:

که فاعل ښځینه جنس وي فعل ورسره په ښځینه ډول کارول کیږي او که فاعل نارینه جنس وي نو د جملې فعل ورسره د نارینه په ډول راوړل کیږي.

## د شخص له مخې مطابقت او سمون:

هغه دی چې په جمله کې (فاعل، مسند الیه، مبتدا) هر یو شخص (لومړی- دویم – دریېم) راغلی وي نو (فعل، مسند ، خبر) ورسره سم وکارول شي.

## په پښتو ژبه کې د مسند الیه او مسند سمون:

په پښتو ژبه کې د مسند الیه او مسند رابطه اوسمون د فعل په ډول او ګروپ پورې اړه لري.

د نحوي وضعیت له مخې دپښتو ټول فعلونه په دوو اساسي ډلو ویشل کیږي (لازمي او متعدي)

یو: د ټولو لازمي او متعدي فعلونو په حالیه (ناتېره) ګروپ کې د فعل او فاعل ترمنځ مطابقت وي.

دوه:د متعدي (معلوم او مجهول) افعالو په ماضیه (تېره) ګروپ کې د فعل او مفعول ترمنځ مطابقت لیدل کیږي.

د موضوع د روښانولو لپاره دغه لاندې مثالونه راوړو:

الف: په لازمي فعلونو کې د فعل او فاعل سمون په لاندې توګه دی:

لازمي فعل په تېره زمانه کې:

1- زه پرون له پوهنتون څخه کورته راغلم.

2- مونږ پرون له پوهنتون څخه کورته راغلو .

3- ته پرون له پوهنتون څخه کورته راغلې.

4- تاسې پرون له پوهنتون څخه کورته راغلئ.

5- دی پرون له پوهنتون څخه کور ته راغی.

6- دوي پرون له پوهنتون څخه کورته راغلل.

7- دا پرون له پوهنتون څخه کورته راغله.

8- دوی پرون له پوهنتون څخه کورته راغلې.

په دغو مثالونو کې ګورو چې فعل (لازمي) د جملې له فاعل سره په تېره زمانه کې د عدد او شخص له مخې سمون لري.

## 2- لاژمي فعل مطابقت په اوسنۍ (ناتیره) زمانه) کې د فاعل سره:

| | |
|---|---|
| 1- زه ستالیدو له پاره راځم | مونږ ستالیدو له پاره راځو. |
| 2- ته زما لیدو له پاره راځې | تاسې زما لیدو له پاره راځئ. |
| 3- دی، دا زما لیدو له پاره راځي | دوي زمالیدو له پاره راځي. |

په دغو جملو کې د فعل سمون د فاعل سره د شخص او عدد لـه مخې جوت دی ولې د درېیم شخص مطابقت د فعل سره د جنس، عدد له مخې نه ښکاري ځکه یو ډول تصریف شوی دی.

ب: د متعدي (معلوم) فعل مطابقت:

1- اوسنۍ زمانه:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| 1- زه مقاله لیکم | مونږ مقاله لیکو |
| 2- ته مقاله لیکې | تاسې مقاله لیکئ. |
| 3- دی مقاله لیکي | دوي مقاله لیکي. |
| 4- دا مقاله لیکي | دوی مقاله لیکي. |

2- د متعدي (معلوم) فعل مطابقت په تېره زمانه کې:

| مفرد | جمع |
|---|---|
| ملالۍ زه لیدم | پلوشې مونږ لیدلو |
| ملالۍ ته لیدې | وریښمینې تاسی لیدلئ. |
| زرمینې دی لیده | ګل پاڼې دوي لیدل |
| زرمینې دا لیدله | ګل پاڼې دوي لیدلې[1]. |

## بله بېلګه:

(که چا خپل ځان وپېژاند، خپل تاریخ، خپل قوم، خپل هیـواد یې وپیژانـد خپلـه خاوره او خپلـه ختـه یې وپیژند لـه. . . او که نه دغه یې ونه پیژندل نو ...

په لوړ مثال کې خپل ځان، خپل تاریخ، خپل قوم او خپل هیواد هر یو د مفعول په توګه دي چې د جنس او عدد له مخې مفرد، مذکر ګڼل کیږي نو فعل یې هم د مفعول سره په هماغه توګه (وپیژاند)

---

[1] دجنس، عدد، شخص دریواړوله مخی سمون لري.

سمون لري. او بیا (خپله خاوره) (خپله ختېه) د مفعول په توګه ښځینه مفرد جنس دی او فعل یې ښځینه جنس مفرد په توګه ورسره سمون کوي.

همدارنګه (ونه پېژندل) د جمع په توګه د مخکنیو برخو له پاره د جمع په صورت کې د ډیرو مفعولونو سره سمون او مطابقت ښودلی دی.

## ج: د متعدي مجهول فعل سمون:

په هغو جملو کې چې دغه ډول متعدي فعلونه وي د فعل (مسند) سمون او مطابقت په دواړو زمانو کې (ناتېره = تېره) د مفعول سره ضروري دی ځکه چې دلته د فاعل د نیشتوالي په وجه مفعول د نائب فاعل (مسند الیه) وظیفه ترسره کوي او په دې وجه ورته د فاعل نائیب هم وایي.

1- متعدي مجهول فعل په اوسنۍ زمانه کې:

اوس نوی پلان جوړیږي. اوس نوي پلانونه جوړیږي.

تاسې ځورول کیږئ. دوي او مونږ ځورول کیږو.

په دغو مثالونو کې (نوی پلان) (نوي پلانونه) (تاسی) دوي او مونږ مفعول (نایب) او فعل ورسره سمون لري.

2- متعدي مجهول فعل په تېره زمانه کې:

| | |
|---|---|
| کور وساتل شو | کورونه وساتل شول |
| ونه پرې شوه | مضمونونه ولیکل شول |
| ځمکه خړو به شوه | ونې پرې شوې |
| مضمون ولیکل شو | ځمکې خړوبې شوې |

په لوړو مثالونو کې کور، مضمون (نرینه، مفرد) کورونه، مضمونونه (نرینه، جمع) دي. فعلونه یې هم د مفرد او جمع صورتونه ښیي. همدارنګه (ونه، ځمکه) ښځینه مفرد نومونه دي او (ونې، ځمکې) د ښځینه جمع نومونه دي نو فعلونه ورسره د جنس، عدد له مخې په هم هغه ډول سمون لري.

### یادونه:

(په پښتو ژبه کې کله په يوه مجهوله فعلي جمله کې د مفعول سره فاعل هم په ارتباطي حالت کې راوړل کيږي مګر په فعل باندې دغه فاعل مخامخ اثر نه اچوي نوځکه يوازې د مفعول تابع ګڼل کيږي[1] لکه:

دا ليك د ملالۍ له خوا ليکل شوی دی.   دا ليکونه د ملالۍ له خوا ليکل شوي دي.

په پښتو ژبه کې د مجهول فعل يو بل شکل هم شته چې دلته هم مفعول د نائب فاعل حيثيت لري لکه: دا هلك وهل غواړي،   هلته تلل غواړي.   ده وهل غوښتل.

دا جملې د معنا له مخې د مجهول فعل رنګ لري ولې چې وهونکی او تلونکی په کې نه ښکاري خو په لفظي توګه د معلوم فعل رنګ لري، خو بيا هم فعل په کې د مفعول تابع دی چې ورسره سمون لري.

د پښتو ژبې په هغه ډله فعلونو کې چې کومکي فعل او يو اسمي جز (نوم، صفت، قيد، عدد) سره يو ځاي اسمي، فعلي ترکيبونه يې جوړ کړي وي چې مطلق فعلي مونډ جوړ وي په دغه ډله فعلونو کې د فعل لومړنۍ برخه (عنصر) صفت، قيد) هم د جنس عدد له مخې د فاعل يا مفعول سره سمون ښيي.

بيلګې: د ناتيرې زمانې بشپړ شکل:

زه جوړ شم. ته جوړ شې. زه جوړه شم. ته جوړه شې. ځلمی روغ دی. ځلمی ناروغ دی. ملالۍ روغه ده. ملالۍ ناروغه ده.

د تيرې زمانې بشپړ صورت:

زه جوړ شوم. ته جوړ شوې. دا جوړه شوه. دوی جوړې شوې.

مېلمه لوند شو. کوربه ړوند شو. مېلمنه لمده شوه.

ميلمانه لانده شول. کوربانه ړانده شول. مېلمنې لمدې شوې.

همدارنګه فعلی صفات د نژدې او لرې تېرې زمانې په ترکيبونو کې هم داسمي صورتونو په څېر د جنس، عدد څرګندونه کوي لکه:

زه تللی يم (مذکر) زه تللې يم (مونث) يا سږکال ښه باران وريدلی دی، سږکال ډېره واوره وريدلې ده.

---

[1] پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر 2 وك 1370 لمريز كال.

همدارنګه کله هم د مفعول او د مرکب فعل داسمي (عنصر) په منځ کې مطابقت ليدل کيږي ولی په اصل کې د جملې دفعل او فاعل ترمنځ مطابقت له ورايه ښکاري.

زه به ميوه پاکه کړم. زه به ناك پاك کړم:

دلته (زه) فاعل دی او د کړم سره مطابقت لري ولې (ميوه) مفعول يې د فعل داسمي برخې (پاك) سره د جنس او عدد له مخې مطابقت ښکاره کوي.

ځکه ميوه مونث نوم دی (پاکه) مونث شکل لري او (ناك) مذکر (پاك) هم مذکر دی يا دا بل مثال د جمع په صورت کې ګورو:

مونږ به ميوې پاکې کړو. زه به منې سپينې کړم.

بله مهمه خبره د مسند اليه او مسند د سمون په برخه کې داده:

په هغو جملو کې چې قيدونه د فعل د متعلقاتو په توګه راغلی وي نو دغه قيود بيا د فعل نه دمخه راځي او دفعل ځرنګوالی او کيفيت ښيي. قيود د مطابقت او سمون له مخې [1]د فعل سره فعلی غونډ جوړوي، نوځکه که چېري يو فعل د فاعل تابع وي نو دغه مربوطه قيود هم د فاعل تابع ياورسره سمون کوي. يا په بله وينا قيدونه هم د فاعل د پاره تصريف کيږي لکه:

1- د لازمی فعل سره د قيدونو استعمال او سمون: که چېري قيد د لازمي فعل سره راشي نو بيا قيد او لازمي فعل د فاعل سره سمون کوي (په دواړو زمانوکې).

مفرد – زمرك د خپلواکۍ په جشن کې توند توند ګرځي (ګرځيد).

ملالۍ د خپلې خور په واده کې توده توده ګرځي (ګرځيده)

جمع، پوه خلك د ژوند په ډګر کې پاخه پاخه قدمونه ږدي.

دغه مېلمنې تودې تودې ګرځي. (ګرځيدې).

د متعدي فعل سره د قيدونو استعمال او مطابقت:

د متعدي فعل سره په اوسنۍ زمانه کې فعل د فاعل سره سمون ښيي او قيد د مفعول سره مطابقت ځرګندوي:

| | |
|---|---|
| زه دغه ليکوال پوخ پېژنم | زه دغه ليکوالان پاخه پيژنم |
| زه دغه ليکواله پخه پېژنم | زه دغه ليکوالې پخې پيژنم |

---

[1] مطلقی أل ترکيبونه د جنس، عدد، شخص له مخ د فاعل او فعل سره سمون ي.

په دغو مثالونو کې فعل د فاعل سره سمون کوي مګر په دغو جملو کې پوخ د پېژندل سره يو مرکب فعل (متمم) جوړ کړی دی نو دغه د فعل اسمي جز، د مفعول سره مطابقت کړی او دفعل دويم توکی يې (پېژندل) د فاعل سره سمون ښودلی دی.

2- متعدي فعل او قيد په تيره زمانه کې:

| | |
|---|---|
| بېلګې: ما دغه سړی پوخ وپېژند. | (مفرد مذکر). |
| مادغه ښځه پخه وپېژنده | (مفرد مونث). |
| مادغه هلکان پاخه وپېژندل | (جمع مذکر). |
| مادغه تور سرې پخې وپېژندلې | (جمع مونث). |

په دغو مثالونو کې فعل او قيد په ګډه (دواړه) د مفعول سره سمون لري.

3- په متعدي مجهولو فعلونو کې هم داسې راوړو:

1- ناتيره زمانه.

ډوډی تو ده توده خوړ له کيږي.　　ډوډۍ تودې تودې خوړلې کيږي.

2- تيره زمانه:

ډوډۍ ګانې سړې سړې خوړل کيدې.　　ډوډۍ ګانې سړې سړې وخوړل شوې.

دلته ګورو چې په دواړو زمانو کې فاعل نشته ډوډۍ ګانې مفعول (د فاعل نايب) دي نو فعل او قيود يو ځای ورسره سمون ښيي.

د موضوع د ښه روښانولو د پاره په لاندې توګه د جملو داجزاو ترمنځ لومړی د عدد بيا د جنس او وروسته د شخص له مخې برابرتيا او سمون سره د مثالونو راوړو:

1- په جمله کې دعدد له پلوه د مبتدا (مسند اليه، فاعل) او خبر (مسند ، فعل) مطابقت:

ليدل کيږي چې په پښتو ژبه کې فعل د فاعل يا د مفعول دپاره تصريفيږي نو په دغه صورت کې فعل د فاعل يا مفعول سره تابعيت او مطابقت څرګندوي په دې معنا که د جملې (فاعل، مفعول مفرد يا جمع وي نو فعل يا خبر هم د مفرد يا جمع په توګه راځي لکه:

1- چې (فاعل (مسند اليه) مفرد وي.

1- دی دهاتي په غوږ کې ويده دی.　　2- هغه په کومو چرتونو کې ډوب دی.

3- ځلمی د برکلي د خان نوکر دی.　　4- ځلمی ګرم نه دی بلکې ملالی ګرمه ده.

2- فاعل (مسند اليه) د جمع عددوي:

په پښتو ادب کې د قلندر په نامه څلورتنه شاعران تېر شوي دي.
- دوي لا خبرنه دي. دوي د چا نوګران دي.
- د پښتونخوا په سيمه کې درې لوی ادبي مرکزونه منځ ته راغلي دي.
- دوي لاخبرې نه وې چې کډې رواني شوې.
د مفعول مثالونه:
ملالۍ کتاب ولوست (مفعول مفرد ، مذکر).
اڅك کتابچه ورکه کړه. (مفعول مفرد ، مونث) ملالۍ کتابونه ولټول، ولوستل (مفعول جمع مذکر).
ده کتابونه وليکل، (مفعول جمع مذکر)، ده کتابچې راوړلې (مفعول جمع مونث) دې مقالې وليکلې (مفعول جمع مونث).

## 2- د جنس مطابقت اوسمون:

د جنس سمون په دې معنا ، که د جملې فاعل (مسند اليه) د جنس له پلوه ښځينه جنس وي نو بيا (**فعل**، مسند) مونث راوړل کيږي. او که نارينه جنس وي نو بيا **فعل** مذکر کارول کيږي.
د مبتداء او خبر سمون په اسميه او فعليه جملو کې لازمي دی.
1- پسرلی راغی 2- ژمی ولاړ (تېر شو) 3- پخوانۍ دوره تېره شوه. 4- ملالۍ په دې لاره تېره شوه.
5- پخواني کارونه تېر شول 6- پخوانۍ زمانې تېرې شوې.
په اسميه جمله کې:
1- دغه کتاب زما د ورور دی. 2- دغه کتابچه زما د ورور ده.
په اسميه جملو کې چې د مبتداء او خبر برخې دواړه اسمونه وي نوکومکي **فعل** د نژدې والي په وجه د خبر تابع کيږي.
مسند اليه + مسند + اسناد
1- ظلم زور دی. (مذکر) 2- پوهنه رڼا ده (مونث).
ظلم ګناه ده. علم رڼا ده. علم روښنايي ده. څورونه ظلم دی.
د **فعل** سمون د مفعول سره د جنس له مخې:
الف: مفعول (جمع مذکر) + **فعل** (جمع مذکر).
ګلان وکرل شول. ديوالونه اخيږ شول.

ب: **مفعول** (جمع مونث) + **فعل** (جمع مونث).
مقالې خپرې شوې. ورځپاڼې وویشل شوې.
**مفعول** د (نایب **فاعل**) مسند الیه دنده تر سره کوي.
په ماضي متعدي معلوم **فعل** کې د **فعل** مطابقت له **مفعول** سره د جنس له مخې:
الف: **فاعل** + **مفعول** (مذکر) + **فعل** (مذکر).
مالیار باغونه اوبه کړل. مالیار ګلان وکرل.
ب: **فاعل** + **مفعول** (مونث) + **فعل** (مونث).
ښوال د ګلانو غونچې جوړې کړې.
ښوال د ګلانو سرې سپینې ګېډۍ راوړلې.
یادونه: په هغو جملو کې چې دمبتدا برخه دوه نومونه د عطف په توګه راغلي وي هم د جمع حکم لري د جنس له مخې د جمع مذکر یا جمع مونث حکم لري او **فعل** ورسره په هماغه توګه سمون کوي.
الف: 1- دا چاینکونه او پیالې ماتې شوي دي. 2- پیالې او چاینکونه مات شول. 3- د ښار کوڅې او سړکونه خراب دي. 4- سړکونه او کوڅې خرابې دي. 5- هلکان او نجونې رابللې شوې دي. 6- نجونې او هلکان رابلل شوي دي.

## 3- د مسند الیه او مسند سمون د شخص له مخې:

په جمله کې د شخص سمون دا معنا لري چې **فعل** (مسند) باید د هر یوه وګړي (شخص) (1-2-3) سره سم راوړل شي.
که په جمله کې د جملې **فاعل** یا **مفعول** (1-2-3) وګړي وي **فعل** ورسره سم د (1-2-3).
وګړي له پاره سمون کوي.
الف: **فاعل** (مسند الیه) لومړي شخص + فعلی ریشه + د لومړي شخص مقید مورفیم (فعلي خاتمه) لکه: چې ارمان کوم تاله به ژړاته نه درځم.
په دغه مثال کې (کوم)، (درځم) د لومړي شخص ټاکنه او مطابقت دی. بله بیلګه:
1- زه یوې فیصلې ته راغلی وم. 2- زه خو دلته پاتې کیدای نه شم.
ب: **فاعل** (مسند الیه) دوهم شخص + فعلی ریشه + د دویم شخص مقید مورفیم (فعلی خاتمه) ته راغلې. چیرې تللې (تللی) وې؟ تاسې راغلئ.

ج: فاعل دريم شخص + فعلی ريشه + د دريم شخص مقيد مورفيم (فعلی خاتمه):
دی راغی. دوي راغلل. دا راغله. دوي راغللې.

## په پښتو ژبه کې د مطابقت ځينې نورې قاعدې:

اول: په پښتو ژبه کې په لاندې مواردو کې فعل (خبر) د جمع په توګه راوړل کيږي.

1- په هغو جملو کې چې مسند اليه (فاعل) او (مفعول) د جمع عدد په توګه (نومونه، ضميرونه، صفتونه) راغلی وي نو فعل د فاعل يا مفعول سره د مطابقت په ډول جمع راځي لکه:

فاعل (جمع عدد) + فعل (جمع عدد):

هلکان راغلل. نجونې راغللې. مبتدا (جمع- عدد مذکر) + خبر (جمع عدد مذکر).

کاغذونه پر ميز پاندې پراته دي.

مبتدا (جمع عدد مونث) + خبر (جمع عدد مونث) کتابچې پرميز باندې پرتې دي.

دويم: په هغو جملو کې چې فاعل يا مفعول (مسند ،اليه، فاعل) د عطف په صورت کې دوه نومونه (يو مذکر بل مونث) وي صفات د کومکي فعل له ترکيب سره د قاعدې له مخې د نژدې فاعل يا نژدې مفعول تابع کيږي.

1- د مفرد په ډول نومونه د جملې مسند اليه، مسند .

د خوشحال خان په افکارو کې ملي جذبه او جوش پروت دی.

يا داسې هم راځي: ملي جذبه او جوش د خوشحال خان په افکارو کې پروت دی يا په دې توګه:
د حميد بابا په اشعارو کې مجاز او استعاره پرته ده.

همدارنګه په دې لاندې مثال کې هم ګورو چې د جملې مسند اليه (مفعول) هم دوه نومونه (مذکر- مونث) دي چې د جملې وروستۍ برخه (فعل) د نژدې مفعول سره سمون لري.

دوي قانون او لاره برابره کړه. دوي لاره او قانون برابر کړ.

دريم: که چېرې مسند اليه (فاعل) يا (مفعول) د جمع نومونه وي[1] د عطف په صورت کې راشي نو بيا مسند (فعل) نژدې فاعل يا مفعول تابع دی. هلکان او نجونې راغلې.
نجونې او هلکان راغلل.

---

[1] يو جمع مذکر او بل جمع مونث وي.

څلورم: که چېرې داسې جملې وي چې فاعل (مسند الیه) یا نایب فاعل (مفعول) دوه هم جنسه نومونه د عطف په توګه راغلي وي نو فعل هم د جمع په توګه ورسره راځي لکه:

| 1- نارینه نومونه | ښځینه نومونه |
| --- | --- |
| نوم + او + نوم + فعل | نوم + او + نوم + فعل |
| اڅك او بریالی لاړل. | ملالۍ او تورپیکۍ لاړلې |
| زمرك او اڅك راروان دي. | پاڼه او لښته راروانې دي. |
| | ملالۍ او غازۍ ادې د جګړې قهرمانې ښځې دي. |

2- د مفعول په توګه:

فاعل + مفعول + فعل

مذکر

مونږ اڅك او زمرك ولیدل.

فاعل + مفعول + فعل

مونث

مونږ ملالۍ او تورپیکۍ ولیدلې

پنځم: که د جملې فاعل یا مفعول دوه نومونه یو نارینه او بل ښځینه جنس د عطف په صورت کې راغلي وي فعل د جمع مذکر په توګه راځي لکه:

فاعل

نارینه + او + ښځینه

اڅك او ملالۍ له ښوونځي څخه راغلل.

فاعل

ښځینه نوم + او + نارینه نوم

ګلالۍ او ځلمی له ښوونځي څخه راغلل.

د مفعول مثال:

فاعل + مفعول + فعل

(مذکر) نارینه او (مونث) ښځینه

ماناك او منه وخوړل

مامېه او ناك و خوړل.

**شپږم:** خبر د جمع په توګه هغه وخت راځي چې د جملې فاعل او يا مفعول د جنس نومونه وي.

1- اوبه پاكې دي. او به رواني شوې

2- غنم پاك دي. په كرونده كې غنم شنه شوي دي.

په ژرنده كې غنم اوړه شوي دي.

د مفعول په توګه: د جنس نومونو سره **فعل** دجمع (عدد ، جنس) په توګه راځي لكه:

1- هغه اوبه تويې كړلې. 2- بزګر غنم وكړل. 3- په ژرنده كې غنم يې اوړه كړل.

4- په ټيم كې يې تيل راوړل. 5- دوي ډير غوړي وخوړل.

**اووم:** كه په جمله كې مسند اليه (فاعل) د عدد ء(شمير) نومونه وي پرته له يوه څخه د نورو ټولو اعدادو سره **فعل** د جمع په توګه راځي لكه: دوه لاړل. درې كښېناستل. دوې پاڅيدلې. څلور- پنځه – شل پاڅيدل.

ب: عدد د مفعول په توګه: دوه مې وليدل. درې مې وليدلې، څلورېې وپرځول. لس يې وتښتول.

**اتم:** هغه وخت فعل د جمع په توګه راځي چې مصدر (فعلی نوم) د مفعول په توګه د متعدي ماضی **فعل** سره راغلی وي لكه:

دوي د ځان سره ښه كرل ريبل كړي دي. مونږ ورسره ليدل كتل وكړل.

ده وهل كړيدي. هغه ښكنځل كول.

**نهم** : الف) كه د (څو، څوك) استفهامي ضمير د فاعل په توګه راشي خبر يا **فعل** د جمع په توګه راځي. څوك د مفرد د پاره هم راځي.

څورا غلل؟ يا څو تنه راغلل؟

څو ناست دي؟ څو تنه ناست دي؟

څو كښېناستل؟ څو ناست دي؟ څوك ناست دی؟ څوك ناست دي؟

ب: كه د څه، څو، څومره استفهامي ضميرونه په جمله كې د مفعول په بڼه راغلي وي (خبر، **فعل**) جمع راځي.

1- څه دې ليدلي دي 2- تا څه وليدل

3- ما څه وكتل.

4- څه مې ولیکل یا ونه لیکل.

5- نه یې څه وکتل او نه یې څه ولیدل.

2- څو دې راوړل؟ څو یې وخوړل؟

3- څومره دې وژړل؟ څومره دې وکړل؟ ماڅومره زیات وخوړل؟

مرکب ترکیبی بڼه هم دغه قاعده ساتي لکه: یو څه مې ولیکل. څه ناڅه مې کړي دي، څه نا څه یې لیکلي دي.

لسم: په هغو جملو کې چې (مسند الیه، فاعل، مبتدا) د (1-2-3) شخصي ضمیرونه وي په دې معنا چې د یوه نه زیات ضمیرونه د عطف په صورت کې راغلي وي نو (مسند ، فعل، خبر) د جمع په توګه راځي.

الف- 1- لومړی شخص + او + دوهم شخص + فعل.

زه او ته به سره خبرې کوو.

2- لومړی شخص + او+ دریېم شخص + فعل

زه او (دی یا دا) به سره ګورو.

3- لومړی شخص دوهم شخص + دریم شخص + فعل

زه ته او (دی، دا) به سبا ننګرهار ته ځو.

ب: دویم شخص + او + دریېم شخص + فعل

1- ته او (دی، دا) به کورونه جوړ کړئ.

2- ته او هغه به راشئ.

3- (دا ، دی او ته به ولاړ شئ.

په لوړ و مثالونو کې لیدل کیږي چې فعلونه د جمعې په بڼه راغلي دي او دفعل د جمع صیغه د الف (1-2-3) مثالونو کې د لومړي شخص په توګه جمع شوی او دب (1-2-3) مثالونو کې د دوهم شخص د جمع په توګه راغلي دي[1].

## ب: ترتیب: د پښتو ژبې په جملو کې د کلمو د ترتیب مسایل:

(1) په پ تو ژبه ک 3-2 شخص د لومؤي شخص تابع وي.

- شخص د دوهم تابع کيإي همدغه قاعده په مفعولي صورت ک هم را ي.

په اصل کې ترتیب د جملو، غونډونو د اجزاو ترمنځ یو ټاکلی نظم او ترتیب څخه عبارت دی چې دغه اجزاوې بیا په خپلو منځو کې نحوي رابطې ولري.

د یوې جملې د اجزاو د ترتیب څخه مطلب په یوې جملې کې د جملې درغنده توکونو (مورفیمونو او کلمو) د پرله پسې راوړ لو ترتیب او د هغو اجزاو نظم او ترتیب چې د جملې برخې (اجزا) جوړ وي په نظر کې نیول کیږي. په لانډې توګه یې شرح کوو:

اول – په پښتو ژبه کې دجملې د اساسي غړو ترتیب:

لومړی د جملې اساسي غړي (**فاعل**، مسند الیه) او (**فعل**، مسند) په پام کې نیسو. ددې له پاره چې د جملې د غړو د دریځ په باب څرګندونه وشي ښایي دا زیاته کړو، چې په پښتو ژبه کې یوه جمله لږ تر لږه د دوو اساسي برخو څخه لاس ته راځي:

الف: مبتدا (مسند الیه **فاعل**) چې په جمله کې دیوه اسمي توکي یا اسمي غونډ یا غونډونو څخه جوړ شوي وي.

ب: خبر (مسند-**فعل**) چې په جمله کې د یوه **فعل** یا **فعلي** غونډ یا غونډونو څخه جوړ شوي وي.

په دغه اسمي او فعلي ترکیبونو (مسند الیه او مسند) کې د بېلا بېلو توکونو داجزاو ترتیب او ټاکنه او د هغوي رابطه په هرې ژبې کې جلا او بېلې ځانګړنې لري.

په پښتو ژبه کې یوه ډېره لنډه جمله یوازې د یوه فعلي صورت څخه هم لاس ته راځي. ځکه فعلي صورت د **فعل**، مونږ د اصل او فعلي خاتمې سره د مسند او مسند الیه وظیفه تر سره کوي.

لکه: ګور + م ولاړ + و تللی + وم پاڅیدلي + یم.

(که څه هم دلته د مستقیم فاعل (نوم) ذکر په جمله کې نشته).

همدارنګه د **فعل** سره داسمي ډلو ترکیبونه اداتي ډلو ترکیبونه هر یو ځان ته یوه جمله جوړ وي.

پاڅیږه! دلته راشه! خبره واروه!

لاس اوږ دوم. ورټل شو. هلته راغلی.

په لوړ ومثالونو کې د شخص، عدد ډله د فعلي پسینو (خاتمو) په واسطه څرګندیږي. لومړي دري مثالونه ددویم شخص مفرد، څلورم مثال د لومړی شخص مفرد، پنځم مثال د لومړي شخص جمع، شپږمه بیلګه ددویم شخص جمع جملې ښیي. په دې توګه د څرګند نوم فاعل ذکر نشته یا حذف دی.

## دویم: په نحوي جوړښت کې د جملو داجزاو (کلیمو) ترتیب:

ښکاره ده،چې په پښتو ژبه کې یوه جمله د دوو اساسي (اصلي) برخو (مسند الیه او مسند) څخه جوړه یا ترکیب شوې وي په هغو جملو کې چې لازمي فعل یا متعدي معلوم فعلونه راغلي وي نو د نومونو و جملو فاعل ځانته او یا د خپلو مربوطه توکونو سره د مسند الیه (مبتدا) په توګه راځي. او که دجملې فعل متعدي مجهول وي نو بیا مفعول ځانته یا د خپلو مربوطه توکونو (اجزا) سره د مسند الیه په توګه راځي.

لازمي فعلونو کې قیدونه، نومونه، عددونه او نور ادات ارتیکل د فعل سره د متعلقاتو (مربوطاتو) په توګه د جملې د مسند په حیث راځي. یوازې په متعدي معلوم کې ورسره مفعول (Object) هم د فعل د متعلقاتو بشپړونکي برخې په توګه وي. د موضوع دروښانولو له پاره د مسند الیه او مسند متعلقات هر یو جلا جلا په لاندې مثالونو کې تر څېړنې لاندې نیسو.

## الف: د مسند الیه (فاعل) متعلقات (توابع):

په پیل یا مبتدا کې فاعل (نوم) د خپلو توابعو څخه وروسته راځي یعني فاعل (مسند الیه اصلي زړی تر ټولو مربوطه بر خو وروسته راځي تر فاعل (نوم) د مخه د فاعل نژدې ټاکوونکي لکه (صفت، عدد ، نوم، ادات) راځي او په پای کې (نوم) راوړل کیږي.

دمسند الیه توابع د صفت او بیان په توګه یا د تاکید په شکل او یا به د بدل او عطف په بڼه وي په مبتدا کې د اجزا و ترتیب داسې راځي:

### لازمي فعل سره:

1- مبتدا (فاعل + خبر (فعل)

(یوازې د یوه نوم په توګه) هلك + راغی.

(د نوم مربوط برخه (صفت + نوم)- هوښیار هلك + راغی.

د نوم مربوطه برخې (قید + صفت + نوم) ډیر هوښیار هلك + راغی.

د نوم مربوطه برخې (تاکید + قید + صفت +نوم) (خورا ډېر هوښیار هلك + راغی.

(ټاکلی عدد + تاکید + قید + صفت + نوم) یو خورا ډېر هوښیار هلك + راغی.

معینه ټاکلی عدد + توصیفی ترکیب:

اشاره + عددي مرکب ترکیب، دغه یو خورا ډیر هوښیار هلك + راغی.

په دې ترتیب صفت تر موصوف د مخه عدد تر معدود د مخه او اشاره تر مشار الیه د مخه ذکر شوی دی او اړیکي ددغو ترکیبونو ترمنځ د مطابقت په اساس شته دی څکه په پښتو ژبه کې صفت د موصوف او عدد د معدود سره د (عدد، جنس، حالت) له مخې مطابقت لري.

2- همدارنګه که مبتداء اضافي ترکیب وي نو د قاعدې سره سم مضاف الیه د مضاف څخه د مخه راځي او په همدې توګه د مضاف نورې مربوطه برخې هم د مضاف څخه مخکې راځي.

مبتداء (فاعل) + خبر (فعل)

د + مضاف الیه + مضاف + خبر (فعل)

د ځلمي ورور + پاڅېد

د ځلمي کشرى ورور + راغی

د ځلمي تر ټولو کشرى ورور + بریالی شو

د ځلمي تر ټولو یو کشرى ورور + راغی

په دغه ترکیب کې د اضافت (د) تر ټولو برخو د مخه راځي.

## ب: د مسند (فعل) متعلقات:

د فعل مربوطات (اسمونه، اشاره، استفهامي ضمیرونه، عددونه، قیدونه، ادات ارتیکل) او داسې نور وي.

په خبر کې فعل (اصلي- کومکي) د فعل د متعلقاتو څخه وروسته راځي. د فعل (اصلي، کومکي) څخه د مخه په متعدي معلومو فعلونو کې مفعول دمخه او د مفعول څخه د مخه بیا د مفعول مربوطات راځي. که چېرې په جمله کې قیود راغلي وي هغه هم زیاتره د مفعول څخه مخکې راځي.

که دوه قید ونه یویې د زماني او بل یې د ځای په خبر کې راغلی وي نو د زماني قید د ځای څخه یا بل کوم قید او مفعول څخه دمخه راځي. د ځای قید کله هم د مفعول څخه وروسته راتلای شي.

لاندینی بېلګې ګورو:

فاعل ________________________________ (فعل)

زه ------------------------------------------------------------------ راغلم

زه ------------------------------------------------------------------ پرون راغلم

دی ------------------------------------------------------------------ پـرون لـه ننګرهـاره راغی

دی ---------------------------------------------------------------- پرون له کندهاره کابل تـه راغی

اڅك پرون له خپل ورور سره له کندهار څخه کابل ته راغی.

اڅك له خپل ورور سره پرون له کندهار څخه کابل ته راغی.

بل مثال: متعدي فعل:

مسند الیه ________________________ مسند (فعل)

| فاعل | مفعول | فعل |
| --- | --- | --- |
| زه | کتاب | لولم |
| زه | یوکتاب | لولم |
| زه | یو ډیر ښه کتاب | لولم |
| زه | نن یو ډېر ښه کتاب | لولم |
| زه | نن په کتابتون کې یو ډیر ښه کتاب | لولم |
| زه | نن په کتابتون کې د ملالۍ د خور هغه ښه کتاب | لولم |

د خبر په برخه کې ګورو چې فعل تر ټولو مربوطه اجزاو وروسته راغلی چې فعلي ترکیب یې جوړ کړی دی نو په دې اساس ددغه ترکیب زړی هم همدغه فعل دی.

## په پښتو ژبه کې د مسند الیه (فاعل) دريځ:

په وړاندې پاڼو کې مودا څرګنده کړه چې د قاعدې سره سم مسند الیه (فاعل)، د جملې په سرکې یا دجملې لومړۍ برخه جوړ وي نو دغه قاعده په ډیرو ځایونو کې پوره سمون لري.

څنګه چې د پښتو ژبې د نثر او نظم لمن ډېره پراخه ده او په ادبي او هنري برخو کې داسې ډیرې بېلګې موندلای شو، چې په هغو کې فاعل دجملې په سریا په منځ کې د قیدونو څخه وروسته یا خو کله د جملې په پای کې راغلي وي نو د موضوع د روښانو لوله پاره مثالونه راوړو:

### الف : مسند الیه (فاعل) دجملې په سرکې:

1- قافلې په کابل کې ددمې کولو په نیت واړول.

2- پښتو مرکه جوړه شوه.

3- کاروان بېرته راوګرځېد په کندهار کې يې د ميرويس او احمد شاه په لوی انګړ کې د دمې ځاي وموند.

4- د سهر سپيدې و چاودې او قافلې خپله لارو موندله.

5- رهبر د مخه شو او ننګيالی کاروان ورپسې ګړندی روان شو.

6- د پوهنې رڼا وپرکېدله ورپسې د کابل پوهنتون د باغ وبڼ نه پښتو (وړمه) خپره شوه.)

په پورتنيو جملو کې قافلې، پښتو مرکه، کاروان، د سهر سپيدې، قافلې، رهبر، ننګيالی کاروان، د پوهنې رڼا ، پښتو وړمه د جملو مسند اليه، فاعل په توګه ښودلي شو او د جملو په لومړ يو (سر) برخو کې راغلي دي يوازې (د پښتو وړمه) د نايب فاعل په توګه د جملې مسند اليه د قيودو څخه وروسته او د فعل څخه د مخه ځای لري.

## ب: مسند اليه (فاعل) دجملې په منځ کې:

په دغه صورت کې معمولاً د زيات اهميت له کبله د مفعول يا قيودونه وروسته راځي.

1- فاعل د مفعول نه وروسته: داسې غميدلي خلك مانه دي ليدلي. د سيلاب مخه چانيولې ده؟

2- د زماني د قيد څخه وروسته: همدغه وخت دوی خپله ژبه پښتو په خپله سيمه او ورشو کې لکه بريښنا وځلوله.

3- دمکان قيدنه وروسته: خو او شا د پښتو پېلوځي ولګېدل.

د زمان او مکان قيود يو په بل پسې د مسند اليه نه دمخه راغلي وي:

پنځه ويشت کاله پخوا هلته د پښتو مجله راووتله. په اشعارو کې دغه قاعده معموله ده لکه چې د خوشحال خان دغه لاندې شعر ګورو:

لنګر کوټ مغلو ساز کړ<br>
زه په ننګ بيا د افغان شوم

په لومړي بيت کې لنګر کوټ مفعول (مغلو فاعل (سازکړ) فعل.

ده ودې ته وې ليلا که له تابيل شم<br>
د هجران په تيغ به زه په زړه غلبيل شم

## ج: مسند اليه (فاعل) د جملې په پای کې:

دغه طریقه هم د پښتو د شعري او ادبي نثري ژبې خاصه ممیزه ده، چې د عادي محاورو او جملو سره توپیر لري.

مثال:

د خوشحال قدر که اوس په هیچا نشته
پس له مرګه به یې یاد کا ډیر عالم

په دویم نیم بیتی کې (ډیر عالم) د فاعل په توګه د بیت په پای کې راغلی دی.

هرګز به توبه نه کړم د ښه مخ له ننداړو زه — شیخان پیران دې واوري دایم وایم په نارو زه

(خوشحال)

(زه) د جملې فاعل په وروستۍ برخې کې راغلی دی.

## په پښتو کې دمسند (فعل) دریځ:

الف- : هسې خو په حقیقت کې فعل (مسند) دجملې په پای کې راځي لکه:

1- پښتنو هر ډول مبارزې ته ملاتړلې وه.

2- کوم کام چې یو ځل د ازادۍ خوند بیامومي نو بیا هغه په خوښۍ د غلامۍ رسۍ پښوته نه اچوي.

3- په سبا باندې میرویس خان د کندهار ټول اولس راغونډ کړ.

## ب: فعل (مسند) د جملې په منځ کې:

دجنون ځنځیر مې پریوت وګریوان ته
چې په زړه مې ستا د زلفو سودار اغله

په اول بیت کې (پریوت) د جملې فعل دی.

ورك به نه شي له مشرقه تر مغربه
که د علم رهنما کاندي پیدا شوك
زړه زما ډك دی له میني د وطن
خپل وطن ماته عزیز دی تر خپل تن

## ج: مسند (فعل) راتګ دجملې په سرکې:

په شعري ژبه کې خو خامخا دغه ترتیب زیات لیدل کیږي مګر کله هم پرته له شعر څخه په ځینو مواردو کې فعل د مخه راځي چې مونږ به یې په بېله برخه کې راوړو:
په دې برخه کې اوس یو څو نور مثالونه راوړو.

راغلـــه لیـــونی لـــیلا پـــه نـــاز
ښکـــار کـــوي د زړونـــو لکـــه بـــاز

دلته (راغله) او (ښکار کوي) تر نورو برخو دمخه راغلی دی.
یا: یم اتل د زما نوزه          د تاریخ د کار ناموزه

## درېیم: په پښتو ژبه کې دجملې په جوړښت کې د غړو (اجزاو) د پرلـه پسې والـی قاعدې:

الف: دلته باید ووایو چې دجملې اجزا د جملو په ډولونو پورې هم اړه لري. که جمله اسمي وي د کلمو ترتیب ډیر ساده او اسان دی او دجملې برخې، اول مسند الیه بیا مسند او درېیم (ربط (کومکي) فعل راځي ولې که چېرې فعلي جملې وي په ساده او ازادو جملو کې لومړی فاعل بیا فعل یا 1- فاعل، 2- مفعول، 3- فعل راځی مګر په مقیدو جملو کې:
1- فاعل 2- زماني 3- مکاني 4- نور قیدونه 5- فعل راځي.
دغه موضوع په لاندې مثال کې ګورو:

| | |
|---|---|
| 1- فاعل | فعل (لازمی، متعدي) |
| تږول | راغلل |
| 2- فاعل | مفعول – فعل |
| بلبلان | نغمې وایي |
| 3- فاعل | غیر صریح مفعول، صریح مفعول- فعل |
| بریالي | ماته یو قلم، راکړ. |

4- فاعل + قید زمان + قید مکان + غیر صریع مفعول + صریح مفعول + فعل

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| بریالی | نن | دلته | ماته | کتابونه | راکړل |

5- فاعل + قید زمان + د مکان قید + د حالت قید + مفعول + فعل

بریالی نن دلته ژر ژر کتابونه غونډوي

په دې توګه د فاعل او فعل ترمنځ د فعل متعلقات راوړل کیږي. لومړی د ظرف قیدونه بیانور قیدونه او مفعول راځي او په پای کې فعل راځي.

په هغو جملو کې چې د زماني او ځای قیدونه راغلي وي، د زماني قید تر مکاني قیدد مخه راوړل کیږي. لکه:

زه پرون په تلوار له کوره پوهنتون ته ولاړم.

فاعل، قید زمان، حالت، پیل ځای، تم ځای، فعل.

په دغه جمله کې د فعل مربوطات چې څلور توکي دي د اهمیت له مخې وړاندې وروسته کیدای شي.

په متعدي فعلونو کې هم په دې توګه راځي:

ده پرون په بازار کې په تلوار دیوه دوکاندار څخه خپل زوي ته یو کتاب واخیست.

په مجهولو فعلونو کې د فاعل پر ځای مفعول راوړل کیږي او نور مربوطات هم ورسره راځي مګر شمیر یې لږ دی.

ملالۍ پرون په کورکې ورټل شوه.

بله دا چې که د جملې مفعول شخص یعنی پوهمن وي نو هغه دفعل د نورو مربوطاتو څخه د مخه راوړل کیږي لکه:

ما ځلمی له ځانه سره بازار ته بوت

زه توریالی له ځانه سره کور ته بیایم

ما توریالی د کار له پاره د ځان سره راوستی دی.

ما توریالی د بریالي سره یو ځای مکتب ته استولی دی.

په دې صورت کې علتي او معیتي قیدونه هم د مفعول څخه وروسته راغلي دي.

3- په پښتو ژبه کې دجملې اجزا د تاکید او یاد زیاتې توجه دراګرځولو له پاره وړاندې وروسته کیږي. د مثال په توګه که څه هم مفعول په عادي جملو کې د فعل سره جوخت راوړل کیږي ولې د زیاتې توجه او اهمیت له مخې د فاعل نه مخکې راځي.

لکه : د کندهار زوړ ښار احمد شاه بابا جوړ کړ.

یا دا بل مثال: د ګلانو سرونه وړمو ورو ورو او په خیال سره ښورول. زما کتاب تا چاته ورکړ.

په دې جملو کې د کندهار زور ښار، د ګلانو سرونه، زما کتاب مفعول ګڼل کیږي او تر فاعل د مخه راغلي دي.

4- په پښتو ژبه کې که د جملې فاعل نا خپلواك ضمیرونه وي د شخصي ضمیر د غیر اصلی حالت په ځاي راغلی وي نو مفعول ترېنه د مخه راځي. د پښو ترپامې تر غوږ شوه. دوي مې ولیدل. او به دې راوړې. دی دې ولید.

5- همدرانګه په جمله کې دمفعول او فعل ترتیب هغه وخت راځي چې فاعل صرف د فعلي خاتمی (پسینی) په واسط څرګند شوي وي. لکه: سړی وینم. ډوډی وخوره. د تاکید له پاره: څه وینئ؟

6- په هغو جملو کې چې مستقیم فاعل ذکر نه شي او مفعول ناخپلواك ضمیروي فعل بیا د مفعول نه دمخه وي لکه وینم دې، لیکم یې، ګورم دې، جوړوم یې، پاځوم یې.

7- بله خبره خو داده چې د فعل مربوطات لکه زمانی، مکانی او نور قیدونه د اهمیت له مخې د جملې په سرکې دفاعل نه د مخه هم راځي لکه پرون ته چېرې تللی وې. پرون زه په کور کې وم. په هیواد کې څوك کار کوي. په هیواد کې خلك کار کوي. په فابریکه کې کارشته. ددغه ځای په ښکلي درې کې یو اولس ودان و. په منډه کې څوك لومړي شول. په منډه کې زمرك لومړی شو.

په امریه جملو کې هم د ظرف قیدونه اول راځي بیا نور قیدونه او په پای کې مفعول او فعل راځي. سبا ته په بازار کې ماته یو ښه قلم واخله. سبا ته د سلیم سره زمونږ ځای ته راشه!

# د پښتو ژبې د جملو په اجزا و کې لرې والې او نژدې والې
# (Contiuguos) او Noncontiuguos

د پښتو ژبې د جملو ترتیب په عادي توګه لومړی مبتدا او وروسته د خبر برخه ده. هر کله چې مسند الیه د خپلو توابعو (متعلقاتو) سره او مسند (فعل) د خپلو مربوطه برخو متعلقاتو سره نژدې او پرله پسې راشي او نژدې نحوی رابطه یې هم سره جوړه کړې وي دغه د Contiuguos نژدې والی (مجاورت) په نامه یادیږي ولې که چېرې دغه نوموړې برخې د خپل ټاکلي موقعیت څخه لرې لرې او ددوې ترمنځ یوه فاصله راغلې وي چې بیا د هغو کلمو سره نژدې راشي چې ورسره ځانګړې نحوي ترکیب جوړ نه شي کړای دغه د ترکیب د اجزاو او د جملو د اجزاو دلرې والي موضوع Noncontiguos دی. مونږ په پښتو ژبه کې دغه ډول مثالونه په لاندې توګه ښودلای شو.

خو دا باید ووایو چې په هنري او شعري ژبه کې دا ډول مثالونه زیات موندلی شو.

مثال:

چې اثر یې په زړه لوبې د مستی کوي
زه ویلي شم هغه ته معتبر غږ

په دغه بیت کې دوهمه مسره ګورو چې دجملو د غړو تر منځ هغه لرې والی وینو چې په معمولي (عامه ساده) جمله کې نه وینو. دا به داسې وي: زه هغه ته معتبر غږ ویلی شم. چې په واقعیت کې (ویلی شم) د خپل ځای څخه لومړی برخې ته لیږ د کړی دی او د خپل متمم څخه لرې واقع شوی دی او (زه) د غیر صریح مفعول څخه لرې دی.

بل مثال:

راغلـــه لیونـــۍ لـــیلا پـــه نــاز
ښکــار کـــوي د زړونـــو لکـــه بــاز

دلته ګورو چې د (لیونۍ لیلا) ترکیب سره نژدې معین ترکیب جوړ کړې ولی فعل ورځخه د مخه راغلی خو د فعل متعلق قید (په ناز) د خپل کاونډي (فعل) ځخه لری راغلی دی یعنی د بیت په سرکې (راغله) فعل او (په ناز) قید دبیت په پاي کې چې دغه فاصله ددوی ترمنځ لرې والی بیانوي البته په عادي جمله کې د فعل سره د قید جوخت والی ضروري دی، چې په نثري ژبه کې به داسې وایو: لیونۍ لیلا په ناز راغله. او په دویمه مسره کې هم دُغه ترکیب (د زړونو ښکار کوي) سره لرې وینو په دې معنا چې ددغه ترکیب د مضاف الیه برخه له خپله ترکیبه فاصله (لرې والی) پیدا کړی او وروسته راغلی دي.

3- د بلبلو له نظره ګلوته ګوره

لیلی نه ده چالیدلې بې مجنونه

په دویمه مسره کې دغه موضوع ځرګندیږي:

په اصل کې یو استثنایې ترکیب دی یعني بې مجنونه لیلی ددغه ترکیب لومړۍ برخه د ځای په تغییر سره د بیت په پای کې راغلی چې ددغه ترکیب د اجزاو ترمنځ لری والی وینو. همدارنګه په مرکبو جملو کې هم مبتدا له خبر ځخه په یوه لرې فاصله کې واقع کیږي په دې معنا چې دجملې داصلي برخو ترمنځ معترضه (تابع) جملې راغلې وي په دې نسبت د فاعل او فعل لرې والی وینو.

4- خوشحال خټك پخوا تر دې چې په ګوالیار کې بندي شي له اورنګ زیب سره په داسې میړانه چې ساری نه درلود جنګ وکړ.

5- زه خوړلی منګرو زلفو ستایم. په دغه مثال کې د یوې خوا ځخه (خوړلې) فعلي صفت د خپل کومکی فعل (یم) ځخه لرې والي لري[1].

## ج: د پښتو ژبې په جملو کې ځینو نحوي او سبکی بدلونونو (Inverse) ته لنډه اشاره:

دجملې د توکونو وړاندې او وروسته کیدل: که چېرې په یوې جملې کې د توکونو (اجزاو) ترتیب وړاندې یا وروسته شوي وي نو د برخو (توکونو) د ترتیب موضوع بـه برسـېره د نحوي رابطې په

---

[1] یادونه: همدارن ه د جملی د نورو برخو له مخ د اي تغییر هم په ک راغلی چ بدلون (انورسي) هم ورته وایه شي.

درلودلو سره یوه بله ځانګړتیا هم څرګندولی شي، چې دموضوع په مشخصوالي، اهمیت، د یوه لیکوال یاد یوه شخص دوینا په خاص سبك پورې اړه لري.

په پښتو ژبه کې مونږ د جملو داسې مثالونه وینو چې په هغه کې **فعل** د خپل **فاعل** (مسند الیه) نه دمخه راغلی وي او یا دا چې د مسند الیه او مسند اجزا د خپل ځانګړي ترتیب له مخې وړاندې وروسته راغلی وي چې په ژبه کې دغې عملیې ته Inverse وایي.

دلته مونږ لومړی د مسند (**فعل**) وړاندې والی له مسند الیه څخه په ګوته کوو: وینو چې په عادي جملو کې مسند (**فعل**) وروسته د مسند الیه (**فاعل**) څخه راځي او معمولاً په پښتو ژبه کې **فعل** د جملې په پای کې راوړل کیږي مګر کله داسې هم کیږي چې برسېره پر شعري موضوع په ځینو موارد وکی **فعل** (مسند) دمخه راځي.

1- په هغه وخت کې چې مسند ډېر اهمیت ولري او توجه دورګرځولو له پاره مسند دمخه راځي[1].

واورئ خبرونه! هلې وتړئ ملاوې! وغړوئ سترګې! لرې شئ له مخې!

د قید سره هم داسې وي اوس واروئ خبرونه!

2- د تاکید له پاره: لرې کړه دا جاهلان د دفتر د مخې نه.

3- د تمسخر له پاره: کوه د ښار هوټلو نوکې مزې!

4- د خبر دارۍ په مقصد: وساته ځان! پام کوه وروره! ګوره اوردی!

5- د دعا اوښيرا په وخت کې لوی شې هلکه! میراث شي خو د غرضه!

6- په هغو فعلونو کې چې د نفې ساختمان ولري هم بدلونه د **فعل** په ترکیب کې وینو داسې څوك نه ووچې پرده یې بدنه ویلو او ددې د پاره یې ژړل نه. دلته ژړل نه، دنه ژړل له مخې بدلونه ښکاري. ګوري نه چې څه کوي. کاکا چپ شه څه وایه مه!

تاکید امر: زه مبلمه سړی یم ما په چاسپکوه مه!

7- همدارنګه په هغه مرکبو فعلونو کې چې دفعلي صفت او د شول کومکي **فعل** په مرسته جوړ وي د (نه) ادات سره په دې توګه بدلون (وړاندې وروسته) مومی.

---

[1] **پوهاند صدیق ا ر تین، پ تو رامر** 2 **وك کابل،** 1370 **لمریز کال**

سره ددې چې دی جوړ شوی وخونه شو ګرځیدلای.
چې دغه ترکیب په دې توګه (ګرځیدلای نه شو) هم راځي.
2- سره د څپلو نه شوګرځیدلی.
ددغې جملې په لومړۍ او دوهمه برخه کې انورسي (بدلونه) لیدلی شو. یعنی د څپلو سره په ځاي (سره د څپلو) راغلی دی.
8- قیود ، مفعول او نور هم په جمله کې وړاندې وروسته کیږي لاندې مثالونه وګورئ.
1- لاس په نامه شو ورته 2- واړه واړه رومالونه دي ورسره.
چې دا حال دی نو بیا خلك ورته ځي څه دپاره.
په دغو مثالونو کې ورته، ورسره، څه د پاره تر فعل وروسته راغلي دي.

# پنځم څپرکی

## د جولې (شکل) او جوړښت له مخې د جملې ډولونه

### په پښتو ژبه کې د جملو د بېلا بېلو شکلونو نحوي ساختمان:

په پښتو ژبه کې جمله د ساختمان اوجوړښت له مخې لومړی په دوو اساسي ډولونو ويشل کيږي:

1- يوستوې (ساده)                2- غبرګه (مرکبه)

اول يوستوې (ساده) جمله:

کومه پېژندنه (تعريف) چې مود مخه د جملې په باب کړی دی يوستوې (ساده) جمله هم هماغه تعريف لري. په دې معنا چې ساده هغه جملې دي چې په هغې کې د يوه مفهوم څرګندونه شوې وي او د کومې بلې جملې سره اړيکی ونه لري يا دا چې له يو فعل او فاعل يا دوو غونډونو څخه جوړې شوې وي. د پښتو ژبې په ساده جملو کې د مبتدا او خبر برخې ازادې وي.

ساده جملې د مشکل له مخی په (لنډه) او اوږده) باندې بېليږي. د مخکنيو مثالونو د څېړنې څخه داسې نتيجه تر لاسه کيږي، چې په پښتو ژبه کې يوستوې جملې په خپل نحوي چاپيريال کې په لندو او اوږدو (ارته) ويشلې شوې دي.

الف: يوستوې (لنډه) جمله: چې د جملې اساسي برخې يې د يوه مستقل مورفيم (کلمې) او يا ساده غونډونو څخه رغيدلې وي لکه:

(فاعل + فعل) يا (اسمي ساده غونډ + فعلي ساده غونډ).

1- پسرلی راغی.    2- ګلان وغوړېدل    3- ژېړی لمر په غرغرو دی.

څو کلونه تېر شول.

ب: يوستوې اوږده (ارته) جمله! چې دجملې اساسي برخې هر يو (مسند اليه، مسند) د څو ساده لنډو يا اوږدو ترکيبونو (غونډونو) څخه وي لکه: دغه وخت احمد شاه بآبا په دوا به کې د فوځ په تنظيم، ترتيب، روزنه او د خوراکي موادو په تيارولو بوخت و.

دلته دغه وروستۍ برخه د يوه اوږده ترکيب په توګه د جملی خبر سره رابطه او تعلق ښيي.

- د ستارنامه د خوشحال خان خټك د نثر يو غوره او مشهور كتاب دی.

- د ژبـو او ادبيـاتو د پـوهنځي د دريـم ټـولګي محـصلينو نـن پـه اتـو بجـو د كابـل پوهنتـون پـه كتابتون كې ستره او درنه مشاعره وكړه.

په دغه دويم مثال كې د جملې د مبتدا او خبر دواړه برخې د ډيروتوكونو څخه رغيدلي او اوږده يوستوې جمله ګڼله كيږي، چې زيات مثالونه يې په ګوته كولی شو. اوس مو چې دساده جملو يادونه وكړه، بده به نه وي. چې د معنا له مخې د يو ستوو جملو ډولونو ته هم يوه لنډه اشاره غوندې وكړو:

## د معنا له مخې د يو ستوو جملو ډولونه:

په پښتو ژبه كې د جملې معنوي ويـش د عروضـي خـصوصياتو لـه مخـې ښـه پېژنـدلي كيـږي. څنګه چې د مخه موهم يادونه وكړه، چې دغه عروضي برخه پـوره نـه ده څېـړل شـوې. مونږ دلتـه پـه لنډه توګه د عروضي او نحوي خصوصياتو په نظر كې نيولو سره داسې يادونه كوو:

په پښتو ژبه كې د ليكلي او شفاهي موادو په تائيد جملې په خبري (بياني)، انـشايي (نـاخبري) او داسې نـورو بانـدې جلا شـوي دي. د ځينـو ماخذونو پـه اتبـار د جملې ډولونـه (خبري، سـوالي، امري، تعجبی)[1] ښودلي دي ولی بيـا ځينـو (بيـاني، سـوالي، امري، خطـابي)[2] پـه ډول راوړي دي. همدرانګه پوهاند رښتين جملي په خبريه او انشايې سره جلا كړي دي چې په انشايي جملو كې بيـا استفهامي، امريه، تمنا يي، ندايي، قسمي، تعجبی، شكي، توبيخي، او تاكيدي ښودلي دي[3].

مونږ د معنا له مخې يوستوې جملې په لاندې توګه د مثالونو سره راوړو:

**اول: خبري جمله:** هغه ده، چې د يوشي د حال او كيفيت بيان كوي. يا په بله وينا په هغې كې فكر د خبر په توګه بيانيږي چې ددغې جملې په پای كې دليك نخښنه (ټكی) راځی. لكه:

ملالۍ د ميوند د جګړې زمرۍ وه.

د دستارنامې نثر يو عادي او ازاد نثر دی. (توريالی پښتون). (179 مخ)

دغه خبري جملې د مفهوم او ساختمان په لحاظ هم سره بېليږي:

---

[1] **پرويز  انلري، دستور زبان فارسی، ايران،** 1352، 11 **مخ.**

[2] **محمد ا  لطف دستور زبان فارسی، نحو، كابل،** 1360 (21-35) **مخونه.**

[3] **پوهاند صديق ا  ر  تين، د پ  تو رامر،** 2 **وك، كابل** 1370 **لمريز كال**

دغه جملې د نورو څخه داهنګ، تون له مخې توپيريږي. په دغه ډول جملو کې ممکنه ده د اهنګ فشار لوړوالی د جملې په يوې برخې باندې راشي خو په عمومي توګه اهنګ يې ټيټېدونکی دی.

په خبري جمله کې يو واقعيت، پديده، پېښه او داسې نور حالتونه په مثبت يا منفي توګه بيانيږي او په لاندې توګه يې راوړو:

**الف**: خبري حقيقي مثبته جمله: په واقعيت کې د يوې پېښې اصلي بيان دی.

ملالۍ کړکۍ پورې کوي.

دلته دکړکۍ پورې کول د ملالۍ له خوا يو حقيقت دی چې بيانيږي.

**ب**: خبري جمله د يو واقعيت تائيد او تصديق کولو او تاکيد په لحاظ هم وي.

او دغه د (خو) ادات ورسره زيات راوړل کيږي. وطن خو زمونږ مور اوپلار دی. دا خو څه ځرګنده خبره نده. دا خو څه ګرانه خبره نه ده.

**ج**: حقيقي منفي خبري جمله: د هغه واقعيت پديدې اظهاريه ده چې په واقعيت کې موجوده نه وي يا شته والی يې ثابت نه وي.

په دغه ډول جملو کې د (نفی) ادات د فعل ياکومکی فعل نه د مخه راځی.

1- ستاليك نه دی راغلی، دلته ربا نشته، څوك كار نه كوي.

**دوهم ناخبري:**

1- د پوښتنې جمله: دويونکي مطلب او مقصد سوال او پوښتنه وي. د يوه شخص يا يوې موضوع يا يو ځاي او وخت په باره کې پوښتنه کيږي او دغه ډول جملې د ځواب غوښتونکې هم دي.

ددغو جملو مهمه ځانګړنه د ويلو خاص اهنګ او فشار دی د غږ په لوړوالي پورې اړه لري او په ليك دود کې د پوښتنې نښه د جملې په پای کې اېښودل کيږي.

سواليه د خبري جملو څخه د اهنګ په توپير هم بېلېږي.

1- ښه ګلونه يې وکرل، (خبری) 2- ښه ګلونه يې وکرل؟ (سواليه) د فشار اهنګ لوړوالی دجملې په سريا پاي کې راځي.

دا خلك ويده دي. دا خلك ويده دي؟ دا خلك ويده دي؟ په کوټه کې ته وي؟

2- د پوښتنې دا داتور په راوړلو سره:

الف: د يو شخص يا شخص د ټاکلو او پېژندلو لپاره:

2- څوك پرون راغی؟ پرون څوك راتمی؟ چا کتاب راوړی و؟ کتاب چا راوړی و؟

2- ته څوك يې؟ دا څنګه قام خادم يې؟ څنګه راغلې؟

ب: د يو شي، ځای، وخت اندازې، علت او داسې نورو مقصدونو لپاره پوښتنه ده.

څه يې وويل؟ چېرته ځې؟

1- څه شی کوې؟ 2- کوم پلوځئ

کوم شي غواړې؟ کومې خواته ځې؟

څه ډول کتابونه غواړې؟ له کومه ځايه راغلې؟

3- کله راغلې؟ څه وخت راغلې؟ تر کومه ناست يې؟

4- څومره خبرې کوې؟ څومره دې په کار دي؟ څونه اخلې؟

5- څنګه راغلې؟ څله راغلې؟ د څه دپاره خبرې نه کويږ

ولې دې ونه ويل؟ دوی ولې څه نه اوري؟

همدارنګه استفهامي جملې د تاکيد په توګه:

تا خو دغه کتاب لوستلی دی؟

ج: همدغه شان د (ايا) د کلمې سره هم راځي او خطا بې مفهوم ورکوي.

ايا په دې څوك نه پوهېږي؟ ايا دا انصاف دی؟

د: بله دا چې استفهاميه جملې چې د احتمال په صورت کې هم راځي.

دا قلم لنډ دی که اوږد؟ چای ښښې که اوبه؟ لکه چې خوب دې وړي؟ لکه چې ناروغه يې؟

2- امريه جمله: چې دويونکي مطلب او مقصد په کې د يوه کار غوښتل، د امر، حکم، غوښتنې، هيلې، بلنې مشورې اخطار په توګه وی.[1] دغه جملې هم په خاص اهنګ سره ويل کيږي.

1- کار وکړه! ته نوره مه ژاړه!

2- راځه چې ولاړ شو! بې ځايه خبرې مه کوئ!

3- ګوره رانه شې! پام کوه رانه شې!

4- هلکان دې ولاړ شي!

---

(1) **پوهاند صديق ا رشتين، پ تو رامر،** 2 **وك كامل** 1370 **ل كال**

5- خدای دې خير کړي!

3- **تعجبي جمله**: د حيرانتيا په حالت کې څرګنديږي.

تعجبی جمله د سواليه په توګه راځي ليکن توپيريې دادی چې سواليه جمله د ځواب غوښتنه کوي مګر تعجبي ځواب نه غواړي.

څومره ښه هوا ده! څه کارونه يې ونه کړل! څه ورځې وي! د افسوس، شاباسي او نورو اداتو سره هم دغه ډول جملې جوړيږي.

4- **تمنايي جمله**: دغوښتني او هيلې مطلب په کې وي د تمنا له کلمو او فعل څخه جوړيږي: کاشکې خپلو هيلوته ورسيږو، ارمان وسه مونه رسيږي.

5- **شکي احتمالی جمله**: چې مقصد او مطلب ثابت نه وي او سړی په دووکې حيران وي يعنی زړه نازړه. ښايي خور ورسره راغلې وي. ګوندې راشي. ګوندې ښه قلم وي اخك به لاړشي که نه.

6- **ټينګاري جمله**: د تاکيد او ټينګار په مقصد راځي:

خامخا به راځي. خامخا به يې غابنونه پرې وباسم چاچې کړی نن پرون پرمونږ تېرى دى.

هر و مرو به تللی وي. ضرور به راځي.

7- **قسميه جمله**: په يو کار باندې د خلکو د يقين راوستلود پاره په يوه مقدس او محترم شي، ذات باندې لوړه کول څرګندوي لکه:

د وطن په پاکه مينه زه قسم خورم. خدای دِ ورښتيا وايم

8- **دعايه**: د خير اوښيګڼې دغوښتنو او څرګندولو له پاره وي.

خدای دې زمونږ هيواد اباد لري. خدای دې مل شه.

ژوندی دې وي افغانستان! غازيانو څښتن مومل شه!

تل دې وي خپلواکي!

9- **ندايي جمله**: چې دندايي ترکيب او فعل څخه جوړه وي. په خپله ندايي ترکيب هم د جملې مطلب لري البته په ځانګړي نحوي واحد کې، مګر که د کومې جملې د يوې برخې په توګه وي نو بيا د هماغه جملې د يوه غړي په توګه ندايي جمله جوړ وي.

ای خدايه! اي خدايه خير کړې!

بختوري!                    اى ځلمو خبره واروئ!

او خپله خدايه! [1]

**دويم : مركبه (غبرګه) جمله**: د پښتو ساده جملو په باب مود مخه يادونه کړې ده اوس غواړو د پښتو ژبې د مركبو جملو په باب هم يو څه وغږېږو.

څنګه چې علم او تجربې څرګنده کړې ده د لومړنيو د ورو انسانانو خپل خيالونه او خپلې مفکورې د ساده جملو په وسيله بيانولې او مطلب ته به سره رسيدل، ولې د ژوندانه د ضرورتونو او د ټولنې د ټولو پرمختګونو له امله په ژبه کې هم داسې بدلون او انکشاف راغلی چې د ساده جملو ځای مرکبو ته پاتې شو او په دې توګه د مركبو جملو استعمال هم په ژبه کې د ساده جملو تر څنګه دود وموند.

د خپلې موضوع څخه به لرې نه درومو. د مركبې جملې هغه تعريفو نه او د ډولو نوويش چې بېلا بېلو ژبپوهانو په بېلا بېلو وختونو کې کړی د هغو په استفادې سره مونږ غواړو چې پښتو ژبه کې غبرګې جملې او د هغوي ډولونه د پښتو د ليکلي او شفاهي ژبې د مثالونو او موادو پر اساس ترکومه ځايه چې ممکنه وي وښيو.

مخکې تردې چې مونږ په پښتو ژبه کې مركبې جملې او د هغوي ډولونه او شکلونه (جولې) وښيونو لومړی بايد دا هم څرګنده کړو چې د غبرګو جملو په بـــرخه کې څومره ماخذ ونه[2] کتل شوي دي او په دغه باب د ژبپوهانو نظريې سره نږدې وينو ولې د مرکبو جملو په کلاسيفيکشن (ډلبندی) کې ځيني توپيرونه ليدل کيږي. دلته د موضوع د اوږدوالي له کبله دغه ټولې نظرې نه راوړم ښايي په دغه هکله دغه لاندې ماخذونه وګورئ[1].

---

[1] **يادونه: د ژبې د وينا يني اشكال كه ه هم د ساختمان له مخې به جمله نه وي ول كله هم په خپلواكه او مستقله تو ه را ي. يني ورته نيم ؤي جمل وايي خو دا خبره د يادولو وؤده چ دغه شكلونه اصوات د افسوس، تعجب، ندا، تاكيد. په جملو ك د خپلو مخكنيو او يا وروستنيو مفاهيمو له مخې د جملو سره معنوي رابطه ر ندوي لكه او ومره بده خبره ده! واى ه وشول! افسوس ه بد كاروشو! شاباس ه باس ه ه خبره ده! نه داس نه ده!.**

[2] **الف: د شوروي د علومو اكاأمى د روسي ژبى انستيتوت، د معاصرې ادبي روسي ژب رامر مسكو** 1970 **(**652-741**) مخونه.**

**ب: پوهاند محمد رحيم الهام روش جديد در تحقيق زبان دري، كابل پوهنتون 1340 (157-162) مخونه هربرت پنزل پ تو رامر كابل، 1340(207) مخ.**

**(ج) پرويز خانلري، دستور زبان فارسى، انتشارات فرهن ايران شهر پوره** 1354 **(**243-247 –253**)**

**(د) پوهاند صديق ا ر تين پ تو رامر** 2 **وك كابل،**1370 **لمريز كال.**

[1] **الف محمد ل مومند، د پ تو ژب لپاره بلخ** 1317**، (**335**) مخ.**

**ب: محمد اعظم ايازي، پ تو قواعد، كابل،** 1318**، (**200-209**) مخونه.**

د مرکبو جملو د پېژندنې او تشريح موضوع په زياترو ګرامرونو کې يو ډول، نژدې او سره ورته دي چې مرام او مقصد په کې هماغه يو دی ولې د غبرګو جملو په ويش او ډلبندۍ کې څه نا څه د نظر بېلوالی ليدل کيږي. يوازې مونږ دغه نظر رانقلوو:

مرکبې جملې هغو جملو ته ويل کيږي چې د دوويا څو يوستوو جملو څخه جوړې شوې وي او د يوه پوره مطلب څرګندونه وکړای شي. او يا دا چې غبرګه جمله د دوويا زياتو فعلي واحدونو څخه جوړه شوې وي.

**مرکبه (غبرګه) جمله:** د دوويا زياتو ساده (يوستوي) جملو څخه جوړه او يوه جمله د بلې سره لفظي او معنوي رابطه ساتلی او هره يوه جمله ځانګړي خصوصيات هم لري. مرکبې جملې په دووګروپونو ويشل شوې دي[2].

1- مرکبه (پيوسته) مساوي 2- مرکبه (تابع) تړلي.

په هر حال دغه دوه ګروپه غبرګې جملې په لاندې توګه سره بېليږي:

1- په غبرګه پيوسته (مساوي) جملو کې ساده جملې (د الحاقيه نښلوونکي، ارتباطي Conjunctiveمقابلوی Contrastive خلاقی Adversative بېلوونکی Disjunctive اداتو سره يو ځای کيږي[3].

دغه ډول مرکبې جملې عبارت له هغو جملو څخه دي چې دساده جوړونکو جملو شکلونه په نحوي توګه سره برابرې او مساوي حيثيت ولري. سره ددې چې دغه ډول جملې په خپل منځ کې معنوي ارتباط ولري مګر په نسبي توګه سره مستقلې خپلواکې ګڼلې کيږي[1].

په دې معنا چې په دغه ډول جملو کې نسبتا معنوي او نحوي خپلواکي او برابروالی ليدل کيږي. همدغه جملې د معنا په لحاظ په څو برخو ويشل کيږي.

همدارنګه دغه ډول غبرګې جملې د جوړښت له مخې بيا په اوږده (منکشفه) او لنډه (محدوده) باندې جلا کيږي:

---

**ج: عظيم شاه خيال. صرف ونحو پ تو. پې ور** (335- 345) **مخونه.**

**(د) پوهاند ر تين پ تو رامر دويم توك.**

[2] **د شوروي اتحاد د علومو اكادمۀ د روسي ژب انستيتوت د معاصرې ادبي روسي ژب رامر، مسكو** 1970 **(**57 **او** 606**) مخونه.**

[3] **س اخمانوا، د (ژبپوهنی اصطلاحی قاموس مسكو** 1966 **(**439**) –**442-3**-(**369**)** 4- **(**134**)-(**362**) مخونه.**

[1] **شوروي اتحاد د علومو اكاأيمي، د معاصرې ادبي روسي ژب رامر، مسكو** 1970 **(**656**) مخ.**

## 1- اوږده خپلواکه (پیوسته) مساوي غبرګه جمله:

چې د دووه یا ددوونه زیاتې یوستوي اوږدې جملې سره یو ځای او ددوي ترمنځ معنوي یا لفظي ارتباط ساتل شوی وي په دې توګه چې د ارتباط داداتو په واسطه سره نښتي یا پرته له هغو څخه وي.

## 2- لنډه (محدوده) خپلواکه (مساوي) غبرګه جمله:

چې د دوولنډو یوستوو جملو څخه لاس ته راغلې وي. دلته یوازې دوه یوستوې جملې د ارتباطي توري یاپرته له هغو نه یو ځای کیږي او همدارنګه دغه ډول مرکبې جملې د یو بل سره درابطې او معنا له مخې په ځو برخو ویشل کیږي چې پوره بشپړ مثالونه یې هم راوړل شوي دي[2].

2- همدارنګه دوهم ډول تابع غبرګې[3] جملې چې مختلطه[4] (مخلوطه)[5] جمله هم ورته ویل شوې ده. ددغه ډول جملو ترمنځ د تابعیت اړیکي او رابطه لیدل کیږي، تابع غبرګې جملې د تابع کوونکي ارتباطاتو له مخې سره تړون لري او تابع کوونکي رابطه د نحوي دریځ له پلوه د غبرګو جملو د اجزاو ترمنځ تړون او پیوستون ښیي، چې د غبرګې جملې تفسیر او پراختیا او یا د جملې د یوه توکي د بیان له پاره وظیفه لري چې دغه ارتباط د غبرګې جملې د جوړښت او ترتیب په بڼې کې منځ ته راځي او د بېلا بېلو لغوي او ګرامري عناصرو په وسیله ځرګندیږي.

## په پښتو ژبه کې غبرګه (مرکبه) جمله:

د یو ستوو (ساده) جملو د ډولونو او جوړښتونو څخه جوته شوه، چې هره یوه یوستوې جمله د یوه فاعل (مسند الیه) او یو فعل (مسند) یا په بله وینا د یوه پرېې دي کاتیفی (Pridicative) واحد لرونکي وي چې پوره مطلب ښیي ولې غبرګه جمله د جملو هغه غونډونه (ترکیبونه) دي چې بشپړ مطلب یې ځرګند کړي وي او د جوړښت له مخې د یوه فاعل او فعل پر ځای په کې دوه دوه یا زیاتې راغلي وي یا په روښانه توګه وایو: په غبرګو جملو کې لږ تر لږه دوه یا څو یوستوې جملې سره یو ځای شوي وي او په دې کې د لفظي او معنوي ارتباط خیال ساتل ضروري دې ځکه که

---

[2] **د شوروي اتحاد د علومو اکاأیمي، د معاصري ادبي روسي ژبـ رامر مسکو** 1970 **(**981-657**) مخونه.**

[3] **د شوروي د علومو اکاأمي، دروسي ژبـ انستیتوت، د معاصري ادبي روسي ژبـ رامر، مسکو** 1970**.**

[4] **پوهنوال محمد رحیم الهام روش جدید در تحقیق زیان دري، کابل پوهنتون** 1349 **(**159**) مخ.**

[5] **محمد اعظم ایازي قواعد پـ تو کابل،** 1318 **(**206**) مخ.**

چیرې دغه لفظي او معنوي ارتباط د جملو ترمنځ نه وي بیا مرکبې (غبرګې) نه ګڼلې کیږي او هره یوستوې جمله ځانله ګڼله کیږي. او د مطلب ټکي به ورځنې په لاس نه راځي.

غبرګې جملې د یوه مطلب د بشپړې ښرګندونې په مقصد جوړیږي د پښتو ژبې په غبرګو جملو کې د یوستو جملو رابطه او اړیکی د کوم یوه ارتباط، عطفي، تابعي توري یا پرته له هغو ترسره کیږي.

څنګه چې یوستوې جملې د معنا او جوړښت له مخې راز راز ډولونه لري نو د غبرګو جملو ډولونه او قسمونه هم د ارتباطي اداتو د ډولونو د استعمال له مخې سره جلا او بیلیږي چې وروسته به راوړل شي.

## د غبرګو جملو ډولونه:

ددې له پاره چې د غبرګو جملو معنا او په مرکبو جملو کې د بېلا بېلو یو ستوو جملو رابطه به ښه شان څرګنده شي نو په پښتو ژبه کې غبرګې جملې په دوو ډلو بېلولای شو.

## اول: پیوستې (خپلواکې) غبرګې جملې:

خپلواکې مساوي جملې هغه دي چې له د وو یا زیاتو یوستو، متوازنو جملو څخه رغیدلې وي او دغه جملې په نحوي توګه سره برابرې او مساوي حیثیت لري ولې په دغه ډول جملو کې یوستوې جملې یو تربله کلك تابعیت نه ښیي خو په نسبي توګه خپلواکې او مستقلې ګڼلې کیږي.

او سربېره پردې چې دغه جملې د مرکبې جملې ساختماني اجزاوې جوړ وي او یو بشپړ مفهوم هم څرګندوي په خپلو منځو کې معنوي ارتباط هم لري. د جملو ترمنځ ارتباط او اړیکې د ارتباطي، عطفي (نښلوونکي او بیلوونکي) اداتو په مرسته ټینګیږي چې په خپل ځاي به یې یادونه وکړو. مګر کله کله هم دغه د عطفي اداتو ذکر په کې شوي نه وي.

په پښتو ژبه کې مساوي خپلواکې (پیوستې) جملې خورا زیاتې استعمالیږي او په بېلا بېلو صورتونو سره څرګندیږي.

## د شکل او جولې له مخې غبرګه پیوسته (مساوي) جمله:

د جولې له مخې د پښتو ژبې غبرګې (پیوسته) جملې په دوو ډلګیو ښودلای شو. لنډه غبرګه جمله او اوږده (منکشفه) غبرګه جمله:

**الف: لنډه غبرګه پیوسته جمله:** هغې جملې ته ویل کیږي چې د دواړو جملو ارکان یې د لنډو او ساده اسمي او فعلي غونډونو (اجزا) څخه جوړه شوې وي.

لنده ساده جمله + عطف + لنډه ساده جمله

مسند الیه + مسند + او + مسند الیه + مسند

د بیلګې له پاره دغه لاندې جملې وګورئ.

1- لمرخلیده او باران وریده

2- څوك تلل او څوك راتلل.

3- څوك به ځي او څوك به راځي.

4- کاروان روان دی او ته خوبونه کوې.

په لومړي او دویم دریمو مثالونو کې مبتداء (فاعل) او خبر (فعل) یو توکیز کلمات دي مګر په څلورم مثال کې لومړۍ برخه د جملې یو توکیز او دوهمه برخه یې دوه توکیز مرکب فعل دی.

همدارنګه د بېلوونکو نښو په واسطه هم دغه ډول ډېرې جملې جوړېږي.

زه راغلم خو ته نه وې، دوی خبرې کولې یا دوي غلي ناست وو.

زه په تمه وم مګر دارا نغله. کارونه ډیر کوي ولې نتیجه نه لري. یا یا رشه یا بیزار.

## ب: اوږده (منکشفه) پیوسته غبرګه جمله:

هغه ډول جملې دي چې د جملو په مسندالیه یا مسند او یا په دواړو برخو کې (فاعل، قیدونه، مفعول، فعل) د جملې اجزاوي د دوونه زیات توکي ولري او د جملو په اجزاوکې یې پوره ارتوالی، زیاتوالي راغلی وي.

په پښتو ژبه کې دغه ډول جملې په لاندې جملو سره ښودلي شو:

الف: لنډه یوستوې جمله + عطف + اوږده یوستوې جمله.

بیلګه : ژمی راغی اوبې وزلي خواران دژمي له سړو او سختو ورځو څخه په ډاراو اندیښنه کې دي.

**ب:** اوږده یوستوې + عطف + لنډه یوستوي.

**بیلګه:** د پښتنو ملي ستر مشر میرویس خان دیر غلګرو پر ضد ډیرې کلکې او سختې جګړې وکړې او هیواد یې د دښمنانو څخه وژغوره.

**ج:** اوږده یوستوې + عطف (او) + اوږده یوستوې.

د پښتو ژبې او ادب پلار خوشحال ختټك به پښتني نړۍ کې د ننګ تورې او قلم غښتلي اتل او پهلوان تېر شوی دی او دده په اثارو کې د هیڅ ډول مضمون کمې او خامي نه لیدل کیږي .

دا بل مثال:

زمونږ دټولنې پوهانو د نوي فکر د روزلو اصلي ښوونځی سراج الاخبار بللی دی او په خپل وار سره ددې ستر ښوونځي زده کوونکو ته د قدر او عزت په سترګه کتلي دي.

د پورتنیو مثالونو څخه جوته ده، چې په غبرګو جملو کې د یوستوو جملو اجزاوې د یو تـوکیز، لنډو (اسمي او فعلي) او یا خو د اوږدو (اسمي او فعلي) غونډونو څخه جوړې شوي دي چې په لوړو مثالو کې یې ټاکلي غونډونه او جملې سره جلا ښکاري.

دغه ډول پیوستې غبرګې جملې د استعمال او معنا له مخې په ازاده (خلاصه) او محدوده (تړلي) سره بېلیدلای شي:

**1- ازاده (پرانیستې):** چې ددوو، دریو یا ډیرو جملو څخه جوړه شوې وي چې دغه شمیر نور هم لازیاتیدای شي په دې معنا چې غیر معینو یازیاتو جملو څخه دعطفي ربط او یا پرتـه لـه هغې څخه وي. البته دغه جملې په خلاص (ازاد) چوکاټ کې راځي لکه:

کله به باران وریده، کله واوره وریده، کله به شین شو، شین به شو، وریځ به شوه او د باران څاڅکي به شو.

**2- محدوده (تړلې) غیر ازاده غبرګه جمله:** دغه ډول جملې معمولاً په دوو جملو باندې ختمیږي کله نا کله دریو ته هم رسیږي.

لکه: 1- هغه ته ویدیدل ضروري وو خو خوب نه ورته.

په دې جملې کې مطلب او مقصد په وروستۍ جملې باندې ختم شوی دی. یا دا بل مثال:

2- دده کارونه هم ډیروو او تګ هم وربه غاړه و.

3- دی باید راغلی وای مګر رانغی.

4- دی تر اوسه په کور کې ناست و خواوس سمدستي ووت.

په همدې توګه زیات مثالونه راوړی شو. په دې برخه کې ځیني پښتو اصطلاحګانې او متلونه هم ځاییږي لکه:

څه لوریږ واوڅه د لوګري زړه لوته نه کیده.

دلته ګورو چې دغه خاصه ځانګړې اصطلاح د معنا له مخې په ټاکلي موقع کې استعمالیږي چې ترینه پوره مطلب اخیستل کیږي د عطف ادات په مرسته ددووجملو یوځای کیدنې سره پوره مقصد بشپړیږي او په جملې پسې د بلې جملې حاجت نه پاتې کیږي ځکه د لومړۍ جملې معنا د دویمې له مخې ثابته او پوره شوه.

## په غبرګو پیوسته، جملو کې د یوستو و جملو نحوي رابطه:

ددغه ډول جملو په پیوستون کې یوستوې جملې په دوو لارو سره یو ځای کیږي:

1- د عطف اوربط په وسیله            2- پرته له عطف او ربط څخه.

اول : د غبرګې (پیوسته) جملې جوړښت د عطف او ربط له مخې:

هغه عطفي ادات چې ددغه ډول جملو په جوړښت کې نحوي تړون ښیي یعنی په غبرګو (مساوي) جملو کې د یوستوو جملو اړیکې او رابطه ټینګوي د مانا او مفهوم له مخې په لاندنیو دریو ډلګیو ویشل کیږي:

یو- هغه عطفي ادات چې د دواړو یوستوو جملو ترمنځ اتصال او پرله پسې والی ښیي.

په پښتو ژبه کې د لومړۍ ډلګۍ عطفي ادات (او) (و) دي چې اکثرا د خپلواکو مساوي جملو په ترکیب کې برخه اخلي: دغه عطفي ادات د یوستوو جملو د تړلو او ارتباط د پاره په لاندنیو صورتونو کې استعمالیږي.

الف: (او) د هغو جملو د پیوستون له پاره پکاریږي چې دوې یادرې پیښې په یوه ټاکلي وخت او زمان کې سرته رسیدلې وي یا ورسیږي.

لکه 1- ماشومان لوبې کوي او زاړه خوب کوي.

2- ملیار ګلان کري او دښن زو زان کري. 3- ځوك به وطن ورانوي او ځوك به وطن ابادوي.

په دغو دریو (مساوي غبرګو جملو کې) 1-2 مثالونه د اوسنۍ نابشپړې (استمراري). او 3- مثال دراتلونکې زمانې نابشپړ صورتونه ښودل شوي دي.

4- زوړ کال په تیریدو دی او نوی کال راوران دی. همدارنګه د تیرې زمانې مثالونه هم ښودلای شو:

1- دوې تلل او هغوې راتلل.  2- ملالۍ له خپلې همزولې سره جګړه کوله او سپوږمۍ ورته خندل.            3- ما کتاب لوست او هغه لیك لیکه.

په دریو واړو غبرګو (مساوي) جملو کې د هرې یوې جملې فعلونه د تیرې زماني نابشپړ صورتونه ښيي.

کیدای شي چې د فعل بشپړ صورت هم په دغو مواردو کې راوړل شي. خو زیات استعمال د نابشپړو فعلونو دی.

د بشپړو فعلونو د پاره دغه لاندې جملې ګورو:

الف: دوي به خپلو خپلو کورونو ته ولاړ شي او خپل خپلوان به وګوري.

ب: (او) د هغو یوستو جملو د پیوستون له پاره چې په هغو دواړو (دریو اړو) کې پېښې یا واقعې یو په بل پسې راغلي وي. په دې مانا چې لومړۍ جمله کې یوه پېښه ذکر شوې او وروسته د بلې پېښې پېښیدنه په دوهمې جملې کې راغلي وي.

یا په بل عبارت د یوې پېښې پای او د بلې پیل وښیي دا ډول جملې په لاندنیو مثالونو کې ګورو:

1- زوړ کال تېر شو او نوی کال راغی 2- کارپوره شو او هندو غره شو

3- منی راغی او دونو پاڼې ژیړې شوې 4- باغ پوخ شو او باغوان یې کوږ شو.

په دغو مثالونو کې لیدل کیږي چې په هره جمله کې لومړۍ یوه پیښه ذکر شوې یا سرته رسیدلې او بیا په دوهمه جمله کې د بلې پېښې پېښیدنه راغلې ده.

دلته باید وویل شي چې د هرې یوستوې جلمې فعلي صورتونه د تېرې زماني بشپړ حالتونه ښيي.

همدارنګه په دې لاندینۍ امري جمله کې هم داسې قاعده راتلای شي.

لکه : وروښو راشئ او د خپل هیواد د ابادۍ د پاره کار وکړئ.

دلته هم لومړي د یوه کار غوښتنه کیږي او بیا په دوهمې جملې کې د بل کار غوښتنه کیږي.

په پښتو ژبه کې غیر له دې داسې مثالونه هم شته دي چې د غبرګې (مساوي) جملې لومړۍ یوستوې جمله یې د فعل بشپړ (مطلق) او په دوهمه یوستوې جمله کې یې نابشپړ (غیر مطلق) فعلونه راغلی وي او دغه پورتنی مطلب تر سره شي.

لکه: زوړ کال تېر شو او نوې کال راروان دی.

دلته په دغې جملې کې (تیر شو) او (راروان دې) دوې مختلفې زماني ښيي یعنی (تېر شو) د تېرې زماني مطلق فعل او راروان دی داوسنۍ زماني نابشپړ (استمراری) ډول څرګندوي.

ج: کله هم (او) عطفي ادات هغه خپلواکې جملې چې ماناګانې یې سره بیلې او مخالفې وي سره تړي لکه:

1- نوم یې خان دی او کوریې وران دی        2- سریې لوی و او فکریې خام و.

3- هندو ستړی او خدای ناراضه!

دوه: هغه عطفي ادات (خلافي، مقابلوی) چې د دوویو ستوو جملو ترمنځ پیوستون راولي.

غبرګې (مساوي) جملې چې په پښتو ژبه کې د (خو، مګر، اما، نو، ولی،لیکن، یوازې) تورو په مرسته جوړیږي، دغه توري (ادات) هغه یوستوې جملې سره یو ځای کوي چې د جملو ماناګانې یې د یو بل نه خلاف او یا مقابل طور سره بیان شي.

څو مثالونه وګورئ:

الف: (خو)

1- پښتو د لغاتو یوه لویه ذخیره او پانګه لري خو له بده مرغه تر اوسه پورې په پوره ډول نه دي راټولې شوي. (رښتین).

2- دلته شاعرانو ډېرې سندرې ویلي دي خو نوی فکر په کې نه و (الفت).

3- ما په ځان پرده واچوله خو حاجتې غلی نه شو: (اجمل).

ب: مګر

(1) د زیاتو ختیځ پوهانو په نظریه پښتو، سانسکریت او ستاد خوږ وخویندو په نامه یادیږي مګر اوس په کې یوازې پښتو ژوندی ده. (رښتین)

2- د کوه تور په لمنو کې ډیر خلک کښته او پورته ګرځیدلي دي مګر د حق او حقیقت رڼا هر چانه ده لیدلې.

3- د هر یوه له سترګو اوښکې توې شوې مګر د اسمان له سترګو یوه او ښه هم تویه نه شوه.

ج: (نو)

(د سیمنار د شروع کیدونه لس د ولس ورځې د مخه ماته د مضمون د لیکلو خبر راکړی شونو ما ژر ژر د یو خاص عنوان په ځای دغه لوی عنوان غوره کړ. (رښتین)

یادغه بل مثال: ما درته ویلي وو نو ته ولې رانغلې.

د: (بلکې) :

لنډی کوم معلوم ویونکی نه لري بلکې د ټول اولس یوه شریکه پانګه ده.

اڅك سنك نه ځوروي بلكې ټول خلك يې ځوروي.

هـ: (ولې):

(داسې غلې ژرندې اوس هم شته ولې مونږ او تاسوته نه ښكاري)

ما ډير صبر وكړ ولې بې صبره شوم.

و: يوازې: (1) ټول په كارونو بوخت وو يوازې ملالۍ په كوټه كې وزګاره ناسته وه.

(پښتو لنډۍ تر اوسه پور په كامل ډول نه دي راټولې شوي يوازې اته زره لنډۍ د پښتو ټولنې له خوا په 1334 ل كال كې خپرې شوي دي).

درې- هغه عطفي ادات (فاصلوي، بېلوونكي) چې دوه يا درې يوستوې جملې سره يو ځاى كوي په دې ډول غبرګو (مساوي) جملو كې د دواړو يوستو جملو څخه يوه پېښنه تر سره كيږي يا تراجرا لاندې نيول كيږي او يا يوه د بلې پر ځاي راځي.

په پښتو ژبه كې عطفي ادات لږ دي چې يو دوه مثاله يې ښودلى شو.

يو د (يا) او بل (كه) توري دي چې سره نژدې مانالري. دغه توري (ادات) (يا-كه) هم مانيزدي. په غبرګو (مساوي) جملو كې د هرې يوستوې جملې په سركې راځي او يا د دواړو جملو ترمنځ راځي.

د جملو ترمنځ : 1- دوې خبرې كولې يا غلې ناست وو.

دلته د دواړو جملو ترمنځ د (يا) ادات راغلى دى ولې داسې ډير مثالونه (خصوصا متلونو، اصطلاحاتو) كې لرو، چې د (يا) ادات دوه ځلې پكې راغلى وي يعنى د هرې يوستوې جملې په سركې يو يو ځل راغلى وي:

لكه دغه لاندې مثالونه:

د جملو په سركې:

1- يا يارشه يا بيزار شه. 2- يا به دې واورم يا به مې واورې.

3- يا لويو غروته ځه يا لويو كوروته ځه.

او يا دغه لاندې ښكلي شعر ګورو:

يا به دابې ننګه ملك باغ عدن كړم يا به د پښتنو كوځې كړم ويجاړې (غنى خان[1])

د (كه) له پاره مثال:

خوښه دې ده كه خوښه دې نه ده.

---

[1] د (يا) سره په ينو وختونو ك د (خو) (او) عطفي ادات هم استعماليإي چ البته د تاكيد مفهوم وركوي.

دوي په خپلو کارونو لګیا وو که وزکارناست وو.

## دویم: په پښتو ژبه کې غبرګې (مساوي) جملې پرته د عطف له اداتو څخه:

په پښتو ژبه کې دغه ډول دوه یا څو (یوستوې) جملې کیدای شي پرته له عطف (ربط) له اداتو څخه په غبرګه توګه راشي. په دغه ډول جملو کې دویلو لحن او اهنګ ستره برخه لري. په وینا کې دغه یوستوې جملې دویلو داهنګ، لحن په واسطه سره تړل کیږي مګر په لیکنه کې د ساده جملو ترمنځ بېلوونکې نښې (کامه) راوړل کیږي چې د جملو ترمنځ د ارتباط وظیفه ترسره کوي او یوه جمله له بلې څخه د هم دغې نښې په واسطه بېلیږي.

لکه: (1) د ژمي واوروې شروع شوې، هر څوك تیارې غلې ته کښیناست (الفت).

2- زما په خیال دا ټول بې فایدې کړ او دی له دې خبرې نه هیڅوك انکار نه کوي (رښتین).

3- احمد شاه بابا په خپله باذوقه ادیب و له تصوف سره یې ډیره دلچسپي درلوده.

4- نرخونه له پخوا نه جګ شول، هر څه د اور په بیه شول.

په لوړ و مثالونو کې هره جمله یوه ځانګړې جمله ده او ددوي ترمنځ یو معنوي ارتباط وینو. پاتې دې نه وي چې د دوویا زیاتو ساده (یوستوو) جملو رابطه او اړیکې پرته له عطفی اداتو څخه د پښتو ژبې په زیاتو متلونو او اصطلاحګانو کې هم وینو. د بېلګې په توګه دا لاندیني متلونه ګورو:

1- او ښان نه ژاړي بارونه ژاړي.

2- جنګ سوړ شو میرې تود شو.

3- په غار موږې وګته په سیورې یې وختېه

4- سترو ګټله هو ساوو څټله.

5- زه پور غوارم دی لاټور غواړي.

په دغو متلونو کې لیدل کیږي چې د هر یوه متل هره یوه برخه جلا او مستقل صورتونه دي خو د معنا له مخې سره معنوي او کلك فرازیالوژیکي ترکیب یې جوړ کړی دی. پرته له دې څخه په ځینو محاورو او اصطلاحګانو کې هم دغه موضوع ښودلی شو.

1- غله ته وایي غلا کوه د کور خاوند ته وایي ځان ساته.

2- زه پور غوارم ته وایې پتیرې پخې کړه.

3- یو له لوړې مري بل یې سرته پراټې لټوي.

همدارنګه په مساوي غبرګو جملو کې چې خلافی یا متقابلې معناوې ولري هم د عطف ادات نه وي راوړل شوې. په دغه ډله کې داسې جملې هم سره یو ځای کیږي، چې د معنا له مخې یو د بل متقابل صورتونه ولري لکه:

یو خوا پړانګ دی بل خوا ډانګ دی.

یو خوا ظلم دی بل خوا زور دی.

کورټ کورټ دلته کوي هګۍ بل ځای اچوي.

نن په ځمکه ګرځي سبا په اسمان

نن یې شلیدلې څپلۍ راښکلې سبا به یې د موټرو نه کوزه پښه نه کیښوه.

## د غبرګو (مساوي) پیوستو جملو ځیني نورې ځانګړتیاوې:

1- کیدای شي چې څو ساده (یوستوې) مستقلې جملې د عطف د اداتو په مرسته او هم پرته له عطف څخه ارتباط پیدا کړي.

لکه: غرونـه و جړکیـدل، سیندونه وشـنېدل، بادونـه وزغلیـدل، سـتوري وځرخیـدل، کائینـات وخوځیـدل، د زیړنـدې او ودې لـه مخـې بندیزونـه لـرې شـول، د ځمکـې لړمـون وسـپړ دی شـو او د پسرلي ښکلې څېره رابر څیره شوه. (ربښتین).

په دغه مثال کې وینو چې اته یوستوې جملې دي چې اوه جملې پرته له عطفي اداتو څخه سره یو ځای شوي او روستنۍ اتمه جمله ورسره د (او) په مرسته تړون ښیي.

2- کله هم داسې پېښیږي چې غبرګې (مساوي) پیوستې جملې کې چې د یو شمیر یوستوو جملو سره یې تړون او پیوستون مونـدلي وي او د ټولـو جملـو د خبر پـه برخـه کې کومکي فعـل پـه بیابیا (تکراري) توګه راغلي وي نو په دغه ډول جملو کې خبر په پوره توګه یـو ځلې راوړل کیږي او په نورو جملو کې یې راوړل ضروری نه دي.

ځکه هماغه یو خبر د ټولو جملو سره به ارتباط لري. لکه: کتابونه ډیروو څه یې ښـه او څه یې نه. په اصل کې درې جملې دي (1) کتابونه ډیر وو. (2) څه یې ښه (3) څه یې نه.

خبر په لومړۍ جملې کې پوره او په نورو کې بشپړ شکل نه لري.

3- همدارنګه داسې هم پیښیږي چې په دواړو یو ستو جملو کې د خبر برخه پوره نه وي.

لکه:

ډیریې مال بدیې حال، ریره زما واك یې د ملا. په خوله خوږ په زړه کوږ.

4- په دغه ډول جملو کې چې مبتدا یو تن یا یو شی وي او څو خبره ورسره راغلي وي نو په لومړۍ برخې کې مبتدا راوړل کیږي مګر په نورو برخو کې یوازې فعلونه راوړل کیږي:

اوښکې خوړونه شو، بیا سیندونه شوه او بیا ویالې شوې او وروسته د ګل په شاخ کې وځلیدې.

5- دغه رنګه غبرګې جملې چې پرته له عطف، ربط څخه ترکیب شوې وي په یوه وخت کې د څو پېښو، واقعو او پدیدو اظهار به هم وي. یا په پرله پسې توګه او یا یوه جمله د علت او معلول په توګه یا د نتیجوي شکل په توګه راځي او یا د یو بل سره په مقابلوي توګه راغلی وي.

کندهاري کوچیان هر پسرلی د پامیر او چترې څمکې ته ورخېژي او بیا ژمی بېرته د کندوز او سمنګانو هوا روته راکوزیږي.

## 2- غبرګې تابع (مختلط) جملې:

په پښتو ژبه کې غبرګې تابع جملې چې (یوه یې اصلي او بله یې فرعي) وي یا (خپلواك او ناخپلواك) د تابع کوونکو ارتباطاتو (تړونو) له مخې د نورو غبرګو جملو څخه یې بېلولی شو، په تابع غبرګو جملو کې د یوستوو جملو ترمنځ رابطه او تړون د تابعیت رابطه ده یا په بله وینا یوه د بلې تابع وي.

په هغو جملو کې چې اصلي او اساسي مطلب ځای شوي وي عمده (اصلي) جمله ده اوهغه چې د اصلي جملې د برخو شرح او بیان وکړي او د نوموړي اساسي جملې تابع وي فرعي نا خپلواکه جمله ده، چې د تابع کوونکو او تابع کیدونکو په نامه یې هم نومولی شو.

تابع جمله هغه جمله ده چې د اصلي جملې جزوي او پرته له اصلي جملې خپله معنا ښکاره کولی نه شي لکه دغه لاندې مثال:

هغه هلك چې پرون دلته راغلی و د احمد زوی دی.

هغه هلك د احمد زوی دی اصله خپلواکه جمله ده او چې پرون دلته راغلی و. تابع جمله ده.

په پښتو ژبه کې اصلي جمله کله د تابع نه د مخه او کله هم وروسته راتلای شي او کله هم د مبتدا او خبر ترمنځ راځي.

لکه : نوی او ښکلی ښار مې ولید چې لوړې ونې او ودانۍ درلودې. په پورتني مثال کې لومړۍ عمده او دوهمه تابع او د (چې) ربطیه سره یې تړون موندلی دی.

په دې حساب د جملې لومړۍ برخې ته اصلي او دويمې ته فرعي يا تابع جمله ويل کيږي[1].

ښايي ووايو چې اصلي جملې هرکله (د مخه) نه راځي بلکې د فرعي (ناخپلواك) جملې نه وروسته هم راځي.

لکه: کله چې دوي دواړو خبرې کولې ماخپل کتاب خلاص کړ. په دغه جمله کې (ما خپل کتاب خلاص کړ) اصلي (عمده) جمله ده.

غبرګې جملې هم دربطي تابع اداتود استعمال له مخې دمعنا په لحاظ بيل ډولونه لري چې وروسته به يې وښيو!

په پښتو ژبه کې غبرګې تابع جملې هم د نورو غبرګو او يوستوو جملو په شان چې د مخه مو د هغو يادونه وکړه په لنډو اواوړ د و جملو باندې ښپلولي شو. دلته يې راوړنه تکراري ده .

## د غبرګو تابع جملو ډولونه د معنا او تابعيت له مخې:

ترکومه ځايه چې ښکاره ده په پښتو ژبه کې د غبرګو (پېوستو او تابع) جملو د ډولونو ټاکلې ويشنه نه ده شوې خو د څېړني او پلټني له مخې په لاندې توګه يې ښپلول غواړو، ولی دا به هم پوره او بشپړ کارنه وي. ښايي په راتلونکې کې دغه موضوع نوره هم وپلټو.

په پښتو ژبه کې غبرګې تابع جملی د معنا له مخې په لاندې توګه راوړو:

### 1- بياني تابعيت:

په دغه بياني جملې کې تابع جمله داصلي جملې شرح او توضيح کوي. په دغو جملو کې اصلي (عمده) جملې د مخه او تابع (فرعي) وروسته راځي چې دا زياته اوږده شرح هم غواړي.

لکه: الف: ده وويل چې ماته يو ښه ساعت راوړه.

ب: ويلې شم، چې په نړۍ کې ډېرې کړکېچنې مسئلې شته دی.

ج: تاسې خو ماته اجازه راکړئ چې خپل مقصد ووايم.

2- **تشريحي جملې**: هغه دي چې د اصلي جملې د يوې برخې شرح او څرګندونه کوي. په دغه ډول غبرګو جملو کې تابع جمله د اصلي جملې د مبتدا (فاعل) خبر، مفعول او متمم شرح او وصف کوي چې په لاندې توګه يې راوړو:

---

[1] **پوهاند صديق ا   ر   تين. پ   تو   رامر دوهم   وك! كابل** 1370 **لمريز كال.**

**الـف: د مبتـدا تـابع غبرګـه جملـه:** چـې دمبتـداء (فاعـل) د حالـت او وضـعيت ښکارندويه وي دلته په اصلي او فرعي دواړو جملو کې فاعل يا مفعول يو شخص وي.

1- دده څه کار وو چې دلته راته.

په دغه دواړو جملو کې فاعل يو تن او (چې) د دواړو جملو ترمنځ تابع کوونکی ربط دی.

2- ټول خلك غواړي چې دښمن له ملکه وباسي. په دغه جمله کې (ټول خلك) فاعل دی.

يا دا مثال: ځمکه هغه سوځي چې اور پرې بليږي.

په دې جمله کې مبتدا هغه ځمکه چې اورپرې بليږي (فرعی)، سوځي (خبر).

په جمله کې تابع کوونکی توری په ساده او مرکب ډول هم راځي. استفهامي، اشاري، ربطي ضميرونه په دغه برخه کې زيات راځي.

1- څوك چې وزګار شي ياغل شي يا بيمار شي.

2- څوك چې د خپل هيواد سره مينه لري هغه د خپل وطن د لوړتيا له پاره زيار وباسي.

3- څوك چې خوشحال ختك پيژني او يا دده نوم يې اوريدلي وي هغه دا هم مني چې خوشحال ختك د پښتو ژبې لوی نومیالی شاعر تېر شوی دی.

په پورته جملو کې ليدل کيږي چې دجملو په لومړيو برخو کې د (څوك چې) ربطی ضميرونه د فاعل په توګه او دوهمي برخي يې (هغه) د اشاري ضميرونه (د (څوك چې) له پاره راغلي دي خو کله داسې هم کيږي چې په دغه ډول جملو کې اشاري ضميرونه رانه شي او هماغـه مطلب څرګند کړي. لکه:

1- څوك چې لاس تنها کې نه کړي خواري ونه کړي زحمت ونه باسی هو سايي نه شي مونـدلی. دلته د لومړی جملې په ارتباط دوه نورې جملې هم د عطف پـه توګـه راغلي او دوهمـه جملـه کې (هغه) اشاري ضمير حذف شوی دی.

2- څوك چې دخلکو د پاره ځان ستړی نه کړي ښه سړی نه دی.

په متعدي ماضي فعلونو کې د (څوك چې) ضميرونه په غير اصلي حالت کې راځي.

لکـه: چاچې زه کارتـه نـه پريښودم هغـه ماشومان وو. يعنی ماشومان وو چې زه يې کارتـه نـه پريښودم.

چاچې په خپل وطن سرونه بايللي دي هغوي تل په عزت ياديږي.

چاچې غټه چوکۍ غوښتله پيدايې کړه.

په مرکب ډول: هر + څوك + چې:
هر څوك چې کوښښ کوي کامیابېږي.
- هر څوك چې له دښمنه تېښته وکوي نو تل پېغور ورته پاتې کيږي.
هغه + څوك + چې:
2- هغه څوك چې خپل خپل کارونه په خپل وخت سره سرته رسوي هیڅکله نه ستړی کيږي.
دغه ډول جملې چې د ټاکلي ربطي مرکبو ضمیرونو (هر څوك چې) په مرسته جوړې شوې وي نو فعل معمولاً په حالیه (ناتیره) زمانه کې راځي. د (هر څوك چې) مغیره شکل (هر چا چې) دی چې د ماضی متعدي فعلونو سره راځي. لکه:
هر چاچې زحمت ګاللی وي راحت به یې لیدلی وي.
هر چاچې کارکړی وي نتیجه به یې لاس ته راوړې وي.
داسې جملې هم لرو چې یوه تابع جمله یې د تېرې زمانې مطلق فعل ونیسي او بله (اصلي جمله یې د راتلونکې زمانې فعل وي.
هر چا چې ښه کتاب ولیکه هغه ته به انعام ورکړ شي یا (ورکول کیږي) یعنی د فعل بشپړ او نابشپړ دواړه صورته راځي.
هر چاچې کار وکړ ګټه به تر لاسه کړي.
د (هغه څوك چې) له ترکیب سره تابع مرکبه جمله جوړه شوې وي نو دلته د اشاري ضمیر راتلل د ارتباطی ضمیر سره خاص د تاکید او اشارې مفهوم زیاتوي مګر کیدای شي چې په دغه ډول ترکیبونو کې (هغه) ضمیر هم حذف شي.
لکه: هغه څوك چې د وطن د پاره زیارنه شي ګاللی ښاغلی سړی نه دی.
- هغه څوك چې د ډېر احترام او ستاینې وړاو پر مونږ ډیر حق لري زمونږ نیکونه دي.
په مغیره صورت کې:
هغه چاچې په وطن سر قربان کړی دی په تاریخ کې به روښانه ستوری وي.
هغه غبرګی جملې چې په دواړو جملو کې یې فاعل یا مفعول یو څیز، (شی) وي:
څه د (چې) د ربطي تابعیت سره:
1- څه چې وي هغه به وي. څه چې کیدل هغه وشول.
2- څه چې په پښتو ادب کې تر اوسه پورې لیکل شوي دي، هغه ټول زمونږ ادبي شتمني ده.

3- هر څه چې کيږي، هغه به کيږي.
4- هغه څه چې ژمې ته په کار وي هغه واخله.

## الف: فاعل نوم وي:

1- منشي احمد جان د پښتو ژبې يو مشهور ليکوال د تاليف او تصنيف خاوند دی چې د ډېرو ښو نثر ليکونکو څخه ګڼل کيږي.
4- ميرزا خان انصاري چې د پښتو ادب په پخوانو شاعرانو کې لوړ مقام لري با ارزښته ديوان يې ليکلی دی.

## ب: د مفعول دحال او کيفيت ښکارندوي وي:

زه هغه چاسره مينه لرم چې د وطن سره مينه ولري.
زه هغه شی خوښوم چې د نورو هم خوښ وي.
د مفعول څرګندويه جمله د اصلي جملې په مسند پورې د (چې) په وسيله تړل کيږي. په اصلي جملې کې ضميرونه اشاري استفهامي، نومونه، ترکيبونه (عددي، اضافي، اشاري) او داسې نور کېدای شي، چې د مفعول په توګه وي. په دغه صورت کې تابع جمله د هغه مفعول معنا ښکاره او څرګندوي.
دلته ددې خبرې ضرورت هم شته چې د اصلي جملې فعل تل متعدي فعلونه وي نوځکه پرته له مفعول څخه پوره معنا نه څرکندوي.
1- زه څه وينم چې ته يې نه ويني.
2-زه څوك غواړم چې خبرې ورسره وکړم.
3- تاسې ما شومان ګورئ چې لوبې کوي.
همدارنګه مفعول په ترکيبی ډول:
1- زه هغه څوك خوښوم چې د وطن رښتيني خدمتګار وي.
2- زه هغه څه غواړم چې دلته نه پيدا کيږي.
3- دوي هغه وعدې چې خلکو ته يې ورکړې وې تر سره نه کړې.
4- دغه کتاب چې دی يې لولي ښې موضوعګاني لري.
يو بل مثال: زما داسې ګل خوښيږي چې ښه وږم ولري.
داسې اوبه راکړه چې خوږې وي.

په پورتنيو جملو کې څه، څوك، ماشومان، هغه څوك، هغه څه، دغه کتاب، داسې ګل او داسې اوبه د مفعول په توګه چې په لومړ يو تابع جملو کې يې شرح او توضيح ګانې شوي دي. يعنى د اصلي جملې د مفعول په حيث په څېرمه (فرعی) جملو کې د هغوي د حال کيفيت وضاحت او څرګندونه ده.

يو څو مثاله چې مفعول د تابع جملې په سرکې راغلې وي.

څه فيصلې چې پښتنو ليکوالو د مفاهمې له لارې په ادبي جرګو کې منلې دي بايد له نظره ونه غورځولې شي. هغه کورونه چې ما ليدلي دي پاخه نه دي.

د مفعول په تابع جملو کې داسې هم وي چې د (چې) تابعيت د مفعول څخه د مخه وي.

چې څه ورته وايم هغه مني.

چې چاڅه ووي هغه ماوکړل.

چې چاڅه ټوټکې راوښودلې هغه مې کړي دي.

**ج**: هغه تابع جملې چې د فاعل او مفعول دواړو حالت او کيفيت څرګندوي:

لکه : اڅك چې يو ښه قلم درلود پرون ورڅخه ورك شو.

**د** : تابع مرکبې جملې چې د (خبر- مسند) يا **فعل** حالت او کيفيت بيانوي. دلته تابع جملې د اصلي جملې (خبر، **فعل**) حالت او کيفيت شرح کوي.

لومړی مونږ هغه مثالونه راوړو چې د جملې خبر اشاري ضمير او کومکي **فعل** (نژدې او لرې) وي او بيا د ربطي (چې) په واسطې د بلې جملې سره ارتباط ولري:

1- دخلکو وظيفه داده چې د وطن په ابادولو کې زحمت وکاږي.

2- زمونږ يوازينی کار به داوي چې خپل هيواد اباد کړو.

3- وسله هغه ده چې په لاس راغله.

## خبر د ټاکلي توصيفي ترکيب په توګه:

4- دا يو ډير ښه قلم دی چې په بل ځای کې نه پيدا کيږي.

5- دده يو غټ صفت دادی چې د هر چا له غمه خوب نه ورځي.

6- شخص د پاره: اديب هغه څوك دی چې په ادبي علومو کې د پوهې خاوندوي.

7- اسمي خبر په تابع جملو کې د (داسې) قيد راغلی وي:

د افغانستان ډیر خلك داسې دي چې خپله ځمکه په خپله کري.

8- خبر د مقدار او اندازې ضمیر په توګه:

لنډه دا چې ددې ماشوم وړ وکوالی او کمزوري دومره وه چې د ژوند تمه يې نه کیدله.

9- تابع خبر د اشتراکیت د قید او د اشاري ضمیر سره د ترکیب په توګه:

د هر اولس ډیري خوږې کیسې او خوږې سندرې هم هغه دي چې زړه راکښون ولري.

10- خبر د يو اشاري (توصیفی) ترکیب (غونډ) په توګه:

حمید ماشوخیل هغه نازکخیال شاعرو چې اسمان ته د شعر زينې ایښودل د اسمان ستوري د شعر په لړ کې پیيل دده هنر دی.

11- تابع خبر عددي ترکیب وي:

دادریم وار دي چې زه راځم او ته نه يې.

## غبرګه جمله چې د (اندازې درجې مقدار) تابعیت ولري:

غبرګه تابع جمله چې د اصلي جملې د فعل د پېښید درجه اندازه او حالت بیانوي. مونږ په دې برخه کې د (داسې) او (دومره) ضمیرونه هم په دغه ډول جملو کې وینو چې د مقدار او کیفیت دپاره وي.

## داسې د مقدار او د کیفیت د پاره:

دومره د اندازې د پاره. په نحوي استعمال کې د اندازې او درجې د قیدونو دنده ترسره کوي.

1- داسې او دومره د صفاتو سره رابطه لري. 2- د فعل سره هم رابطه ښيي.

لکه: ځيني جملې او کلمې په وینا کې دومره لنډې شوي دي چې يوې کلمې غونډې وي. داصلي (عمده) جملې اندازه د تابع جملې څخه ښکاري یعنی د اصلي جملې تفسیر کوي همدارنګه داسې:

دوي داسې کلك ویده شوي وو، چې د هیچا په چیغو او نارونه ویښیدل.

پرته له دې د (څومره، څومره چې، ترکومې اندازې، ترکومه، هرڅومره، هر څومره چې او داسې نورو تابعي کلمو په مرسته غبرګې تابع جملې په پښتو ژبه کې موجودې دي. ددې دپاره دغه لاندیني مثالونه ګورو:

1- څومره چې ګړی تېریدلې هغومره په خلکو کې د مهربان افسر دراتلو تلوسه زیاتیدله.

2- څومره به چې وخت تیریدونو هغو مره به خلك زیاتیدل

3- ځومره چې به شپه پخیدله نو د خان پریشاني به زیاتیده.
4- هر څومره چې د یو ملت شعر او ادب عالي وي هغومره یې اخلاقي نظر او روحیات یې لوړ وي.
5- ترکومې اندازې چې (په کومه اندازه چې) علمي سویه لوړیږي او ترکومه حده چې خلك له حقایقو سره اشناء کیږي په هماغه اندازه د خلکو د هدف مقام لوړیږي. د پورتنیو جملو په ساختمان کې وینو چې:
1- د جملو لومړی فقري فرعي او دوهمې فقرې اصلي (خپلواکې) دي.
2- په (1-2-3) جملو کې د فعل نابشپړ صورت او تېره زمانه په دواړو جملو کې څرګندوي.
4- جمله د مطلق (بشپړ) فعل ښکارندوینه کوي.
5- په جمله کې د اوسنی زمانې د نابشپړ (استمراري) فعل جریان راغلی دی.
په دې برخه کې داسې مثالونه هم وینو چې اصلي جمله د څو فرعي جملو غوښتونکې وي.
تاته ښه معلومه ده، چې هر حرکت په لومړی مرحله کې د رنګارنګو موانعو او مشکلاتو سره مخامخ کیږي نوځومره چې هغه حرکت مخ په وړاندې ځي او زمانه ورباندې تیریږي هغو مره یې په مخ کې موانع کمیږي.
په دغه ډول مرکبو جملو کې مونږ مقابلوي او نتیجوي مفاهیم هم ونیو چې په پورتنیو مثالونو کې یې بیلګې شته دی.
د ځای (مکان) تابعیت : معمولا غبرګې تابع جملې د هغو ربطیه ښنو په مرسته چې د ځای څرګندونه وکړي د اصلي جملې سره یو ځای کوي او تابع جمله د اصلي جملې د ځای شرح او څرګندونه کوي په دې معنا چې د عمده جملې د فعل پېښیدنه په کوم ځای کې شرح او دغه د ځای تابع جمله د چېرې، چېرته، کوم ځای کې سوالونو ته ځواب ورکوي.
د (هلته، چېرته، چېرې) قیود د (چې) ربطي ضمیر سره تابع جملې د اصلي جملو سره نښلوي او هم په دغه وخت کې د تابع جملې یو جز (ځای) هم ګڼل کیږي:

**چېرې دې ښه هلته دې شپه:**

د ځای تابعیت د مرکب ترکیب په واسطه: هر چېرته چې، د ثقافت خاوره بډایه او حاصل خیزه وي د علم او هنر بوټې هم هغلته زرغونیږي او ګلان نیسي.

په دغه ډول جملو کې (هر چېرته) په مقابل کې (هغلته) او د (چيرته چې) به مقابل کې هلته راوړی شي.

په اصلي جمله کې چې ربطي کلمې نه وي تابع جملې د هغه د اصلي جملې بيان ځرګندولای شي لکه:

چيرته چې ځې ما هم له ځان سره بوځه.

همدارنګه چې د چيرې قيد او ربطي ضمير چې په تابع جملو کې راځي نو د قيد (چيري) په ځاي نوم؛ (ځاي) هم په دغه برخه کې راځي او په اصلي جمله کې د ځای د قيد وظيفه تر سره کوي.

مونږ په داسې ځای کې استوګنه کوو چې نور ځوك نشته. يا مونږ داسې ځای ته راغلي وو، چې د غاښې ترسره پورې نورې نيغې او کږې وږې لارې نه وې پاتې.

دغه بل مثال کې ګورو چې په دواړو کې قيد راغلی او د ځای تابعيت په ځرګند ډول ليدلای شو.

مونږ هغه ځاي ته ولاړ و چې هلته خلك نه اوسيږي.

په دغه ډول جملو کې داسې اشکال هم ليدلی شو چې د تابع جملې مسند د اصلي جملې څخه وروسته (په پای کې) راغلی وي لکه:

يوه ورځ مونږ هغه ځای ته چې هلته د وړکتون ماشومانو لوبې کولې ورغلو.

## غبرګې جملې چې د وخت تابع جمله ولري:

په پښتو ژبه کې د وخت تابع جملې معمولاً د (اصلي) جملونه مخکې راځي. د وخت ځرګندونه د (چې) ساده ربطيه او مرکبو شکلونو کې لکه: کله چې، څه وخت چې، هغه وخت چې (هله- هاله هغه مهال چې، هر کله چې، تر څو پورې، چې، ترڅو چې، څو چې او داسې نورو په مرسته کيږي.

لومړی، د (چې) په مرسته تابع جمله:

چې ته راشې زه به ولاړ شم.

زه به هله ځم چې خبره خلاصه شي.

يا دا شرف خان هجري دغه شعر:

ما هاله د ځان ماتم وکړ په وينو+ چې اټك وته مې شاه کړه په ژړا شوم.

يا دا بل مثال: هله به خبر شي چې تارو جبې ته ورشي.

په هغه غبرګه جمله کې چې يوه پېښه په دواړو (اصلي، فرعي) برخو کې تکرار او يا بېلې بېلې واقعي وي د (چې) ربطيه د فرعي جملې په سر او يا په دوهمه برخه کې د اصلي غړي نه وروستی راشي.

فرعي جمله د مخه او اصلي جمله وروسته د (نو) سره شروع کيږي. په دې معنا چې د شرطيه جملې نه وروسته جزائيه جمله د (نو) سره پيل کيږي.

لکه: چې شپه په تېريدو شي نو سباپسې را درومي.

چې خلك ترينه لاړل نو دی غريب يوازې پاتې شو.

دلته (چې) د وخت په معنا استعمالېږي.

کله هم د (چې) تړونی د فرعي جملې د يوه غړي نه وروسته هم راځي. د فاعل مربوطه غړونه وروسته.

د فابريکې خاوند چې دا خبره واوريده سم د لاسه يې فابريکه وتړله.

(چې) په تابع جملو کې د قيودونه وروسته هم راځي.

1- پروسږ کال چې راغلی وم نو دلته يو ښه شاځلمی چامړ کړی و.

2- دې زمانه کې باد داسې را الوتی دی چې ته پر کرسۍ ناست وې نو ستا هم سترګې په اسمان کې وي.

په (2) جمله کې(چې) د (کله چې) په معنا د تابع جملې په سرکې راغلی دی.

په پښتو ژبه کې دچې ربطيه (تړوني) سربيره په نورو معناګانو د زمان معنا هم ورکوي او په دې ډول جملو کې عمده (اصلي) جمله د تابع جملې څخه وروسته راځي.

د تابع او اصلي جملې خبر، په هغو جملو کې چې چار ياکار په دواړو جملو کې په يوه وخت (زمان) کې سر ته رسيدلی وي د قاعدې په توګه د دواړو جملو فعلونه استمراري (نابشپړ) صورت ښيي: چې لمر راخيژي نو ورځ کيږي.

مېلمه چې له کوره وځي نو کور به هم ورسره بدرګه ځي.

همدارنګه داسې جملې هم شته چې د تابع (فرعي) جملې فعل مطلق (بشپړ صورت) او اصلی (خپلواکه) جمله استمراري (نابشپړ) شکل ولري:

زه چې تږی شم او به غواړم. زه چې ستړي شم استراحت کوم. دوستان چې سره مخامخ شي نو روغ برسره کوي.

بله هم زمانه پیښنه د مطلقې (بشپړې) تېرې زمانې څرګندونه کوي.

1- چې درخو سترګې وغړولې نو هغه ښشره ورته ولاړه وه، چې د چا په خيال کې او ده شوې وه.

په دې ترتيب يو بل مثال هم راوړو:

چې يوه پېښنه (عمل) په پرله پسې توګه يعنې د يوې پيښې پای او د بلې پيل وي.

داکبر خان خبرې چې مې واوريدې په زړه مې ورته اور بل شو.

همدارنګه هغه غبرګې تابع جملې چې فرعي جمله يې د اوسنۍ زمانې او اصلي جمله يې دراتلونکې زمانې د بشپړ فعل څرګندويه وي.

1- احمد چې له ښوونځي نه راشي نو بازار ته به يې وليږم.

2- چې منزل ته ورسيږو خبرې به وکړو.

غبرګې جملې چې د مقصد تابع جملې ولري:

د مقصد تابع جمله د اصلي (خپلواکی) جملې په فعل (مسند) پورې د (چې) ادات په واسطه ننښلي لکه:

زه راغلم چې تا ووينم. 2- کتابتون ته ځم چې کتاب ولولم.

د مقصد تابع جمله د اصلي (خپلواکې) جملې څخه مخکې هم راځي نو هغه وخت د تابع جملې په پيل کې (ددې د پاره چې) ربطيه (سيوز) راځي. (ددې د پاره چې په ازموينه کې بريالی شي ښايي ښه سبق ووايي:

## علتي ياد علت تابع غبرګه جمله:

هغه ده چې يوه په کې د بلې دليل اوسب وي او د علت (ربطيه) ادات (ځکه، ځکه چې چې، دا چې، په دې چې، نوولې او داسې نور دي.

همدارنګه له دې کبله چې، له دې سببه چې، هر کله چې، (څنګه چې) هم مرکب تړونکی علتي ارتباط ګڼل کيږي[1].

1- بريالی په ښوونځي کې بريالي نشو ځکه چې سبق يې نه ووېلی.

دلته د بريالي د پاتې کيدو علت د سبق نه ويل دي.

2- دغه سړی ښه عادت نه لري ځکه ورسره څوك راشه درشه نه کوي.

---

[1] دمقصد په تابع مرکبو جملو ک فعل داوسنۀ زمان مطلق شکل راوۉل کيإی.

پرون پوهنځي ته تللی نه وم ځکه ډېر کارمې درلود. دلته عمده اصلي جمله د مخه او مله یا تابع جمله ورپسې راغلې ده.

هغوي خوماته غښ غله وو ځکه چې یووټ یې راباندې په ځو ځو شانه خرڅ کړی دی.

عمده تابع

همدارنګه دغه بل مثال هم ګورو:

الف: په زور او دولت مې ځان میمبر کولو ددې د پاره چې میمبری کې نور زور او دولت پیدا کړم.

په دغه مثال کې دوهمه جمله اصلي او عمده جمله ده.

## ب: زه ددې له پاره (له دې کبله) ستا سره ځم چې لار درته وښایم:

تابع اصلی عمده

ج: څنګه چې تاویلي وو نو ځکه راغلم.

د: څنګه چې دی ناروغه ونورانغي.

پورته د الف: ب، ج، د، مثالونو کې وینو چې ورستۍ جملې اصلیس یا عمده دي او مخکنۍ تابع (فرعی) جملې دي.

## غبرګه شرطیه تابع جمله:

په دغه ډول غبرګه جمله کې هم یوه اصلي او بله (فرعي) تابع جمله وي او تابع جمله معمولاً د اصلي جملې څخه د مخه او کله هم وروسته یا داصلي جملې په منځ کې هم راځي په دغه ډول جملو کې اصلي جمله د شرطي جملې یوه برخه یا د هغې ځواب هم ګڼل کیږي.

په پښتو ژبه کې شرطیه جملې د (که چیرې، که چیرته، که کله او همدارنګه د (چې) د ارتباط په مرسته سره ښلي په نحوي لحاظ د (که او چې) ترمنځ په شرطي جملو کې فرق نشته.

1- که:

1- که ته راغلې زه به هم درشم (راتلونکی زماني فعل).

زه به درشم اصلي جمله، که ته راغلی تابع ده.

2- که ملالۍ دې ولیدله سلام ورته ووایه.

ملالۍ دې ولیدله (تابع) ملالۍ ته سلام ووایه (اصلی).

3- که باد نه وي ونه نه ښوري.

4- که داسې یې شمیرم نو زه به یې په شمیرلو ستړی شم او تاسې په لوستلو. په دغه مثال کې د شرط او جزا دواړه (ربط) راغلي دي. یعنې په کومه جمله کې چې د شرطیه (ربط) راغلی وي نو (جزائیه) ربط هم راځي او هم پرته له هغې څخه لکه چې په لوړو مثالونو کې موولیدل.

که چاره د سروزرو شي نو په کیډه (ځیګر) خویې څوك نه منډي.

2- (چې) د شرط په معنا:

چې شاعر دې دوست شي شعرونه یې ستایه

دلته (د شاعر شعرونه ستایه) اصلي جمله ده چې شاعر دې دوست شي) تابع جمله ده.

همدارنګه دغه مطلب په لاندې متلونو او اصطلاحګانو کې هم لیدای شو.

1- چې ولاړ شې تر بلخه درسره به وي خپله برخه. (2) چې نه دې وي له موره ورته مه وایه چې وروره (3) چې خان یې په یاران یې.

2- د شرطیه له پاره (مرکب ربط) لکه (که چېرې – که کله) هم دود لري.

که چېرې په تندي یې د تور کاکا د دیوال داغ نه وي نو ما به هم نه وپېژندلی.

3- که کله : که کله راپېښ شوې نو موزیم ته به لاړ شو.

(که کله) د زمان مفهوم ورکوي خو بیا هم په دغه جمله کې د شرطه نښه ده.

## په غبرګو تابع شرطیه جملو کې د فعلونو زمانه:

اول چې اصلي او فرعي جملې د اوسنۍ زمانې فعلونه ولري لکه:

1- که ته ځې ولاړ شه مکر ژر راشه.

دلته ګورو چې د تابع جملې **فعل** نابشپړ او اصلی جملې **فعل** بشپړه اوسنۍ زمانه ښیي.

2- که دې زړه غواړي چې زمونږ سره لاړ شې نو ځان جوړ وه.

د دواړو جملو فعلونه نابشپړه اوسنۍ زمانه ښیي.

3- که څوك یو کارکوي او شوق ورسره نه لري هغه هیڅ کله په هغه کارکې نه کامیابېږي.

دوهم په غبرګه تابع شرطیه جمله کې چې اصلي جمله استمراري حال فعل او تابع یې مطلق (بشپړ) **فعل** حال راغلی وي.

1- که کومې پردۍ ژبې ته غوږ کیږدو نو غوږونو ته مو ځینې بې ربطه او ګډو د غږونه راځي. لومړی **فعل** بشپړ او دوهم یې نابشپړ صورتونه دي.

2- که دهقان په خپلې ځمکې کې خواري ونه کړي له ځمکې څخه غله نه اخلي.

3- که یوه دیکه دې ورکړه      سایې خیژي.
مطلق                    استمراری
دریم په شرطیه تابع جمله کې د تېرې زمانې فعلونه راغلي وي. لکه:
که لیك دې ماته لیکلای وای نو خوشحاله شوی به وم.
که تاسې ویلی واي ما به کتاب راوړی و.

## د متضاد (تقابل) تابع غبرګه جمله:

دا هغه ډول جملې دي چې د اصلي (مستقلې) او تابع (فرعي) جملې ترمنځ په واقعي، غیر واقعي توګه تقابل او تضاد موجود وي او سره د اختلافه توازن هم ولري دغه ډول جملې معمولاً د (تړوني) ربطیه تابع اداتو په مرسته یو ځای کیږي. دغه ربطیه تابع ادات یا ساده او یا خو مرکب ډول وي اوکله هم په ځینو ځایونو کې پرته د تابعیت له اداتو څخه څرګندیږي. په پښتو ژبه کې زیات مثالونه د مرکب تابع تړوني (ربط) په وسیله ښودلای شو.
معمولاًلومړی ډول مرکب تړونی (تابع) د (که) شرطیه او مبهم ناټاکلي ضمیر (څه) او هم تاکیدي اداتو له ګډون (ترکیب) څخه جوړ وي بل ډول یې د (سره) قید او (له) ادات، (دې) اداتي ضمیر له ترکیب څخه جوړیږي چې وروسته به یې مثالونه راوړو. دغه تابع ادات د فرعي جملې په سر او یاد فاعل څخه وروسته هم راځي.
اصلي (مستقل) جمله معمولاً د (نو، ولې، نو بیا هم، خو بیا هم، ولې بیا هم، مګر، لیکن) خلافي اداتو سره پیل کیږي.
1- که څه هم مازیار ایستلی وخوبریالی نه شوم.
2- که څه هم مارابللی نه و بیا هم راغی.
3- که څه هم په دې ورځو کې د نړۍ لانجې زیاتې شوي دي خو بیا هم نړۍ (سولې) لپاره کوښښ کوي.

### (سره له دې):

سره له دې چې ناروغ وم پوهنځي ته ولاړم. سره له دې چې کارمې درلود خو پوهنځي ته لاړم.
سره له دې چې ناروغ وم خو بیا هم پوهنځي ته لاړم.
د اصلي جملې په سر کې (ولی) هم ورسره راځي:
سره ددې چې په کور کې کومه ستونزه نه لري ولې وظیفې ته ناوخته راځي.

د اصلي جملو په سرکی مګر:

ژبه که څه هم په ښکاره ډول دغوښې یوه ټوټه ده مګر په حقیقت کې د انسان، سړیتوب، پوهه، ښه ژوند او داسې نور ټول په ژبه پورې اړه لري.

د مستقلې (اصلی) جملې په سرکې (لیکن):

که څه هم رڼا لږه شوه لیکن لاره ښه معلومیږي. همدرانګه د تابعیت ادات د جملې په سرکې او (سره ددې) د اصلي جملې په سرکې هم راوړل کیږي.

که څه هم هلې ځلې موډېرې وکړې سره ددې خپلو هیلو ته ونه رسیدو.

په پښتو ژبه کې برسره پردې یو شمیر داسې مثالونه هم وینو چې ددغه پورتني مطلب څرګندونه کوي. که څه هم د تابعیت تړونی ورسره په ساده توګه او یا هیڅ نه وي خو بیا هم تقابل او تضاد ښیي.

1- وسله که بار ده په سخته ورځ په کار ده.

(2) که غرلوی دی پر سېرېې لارده. چې دا د یو متل په توګه فرازیالوژیکي ترکیب ګڼل کیږي په بل ډول په داسې ویل کیږي. که څه هم وسله بار (زیاتي) ده خو بیا هم په سخته ورځ کې په کاریږي.

څوك يې په ګلي کې نه پریږدي وایي اس مې د خان کره وتړه.

دلته د تابعیت کومه نښه نه وینو خو څنګه چې د پښتو ژبې یوه مشهوره اصطلاح ده او دغه ترکیب په معنوي لحاظ یو فرازیالوژیکی تړلی مطلب څرګندوي.

سره له دې چې څوك يې په کلي کې نه پریږدي مګر وایي چې اس مې د خان کره وتړه.

مقایسوی (پرتلیز) غبرګه تابع جمله:

د اصلي جملې بیان د مقایسې په مرسته کیږي د څنګه، لکه چې، لکه څنګه چې، څنګه پروسیله مقایسه کیږي. (څنګه غروي هسې ځناوروي).

څنګه مخ هسې خپېږه. یا څنګه ژرنده هسې دوړه.

## نتیجوي غبرګه تابع جمله:

په دې ډول جملو کې هم تابع جمله د اصلي جملې نتیجه او پای بیانوي:

1- هغه ډیر زیاروکیښ تر څو بریالیتوب يې په برخه شو.

2- زه په خپله هم نه پوهيږم چې د سرو تعويذ ته ډرامه ووايم كه ناول، افسانه ده كه نور څه نو ځكه دا فيصله ګرانو لوستونكو ته پريږدم.

3- ده چې پر تو د چاى پسې سمدلاسه سرېې او به وځنبلې نو ناروغه شو.

غبرګې جملې چې د يوستو و جملو شمېر په كې له يوې يا دوو څخه تېرى كړې وي:

هغه غبرګې (پيوستې او تابع) جملې چې د مخه مو ښودلي دي په هغو كې دجملو شمېر او اندازه دووته رسيږي او په خپل خپل ځاى مور اوږي دي ولي څنګه چې ليدل كيږي د ادبي پښتو ژبې په ساختمان او جوړښت كې داسې غبرګې جملې په نښه كولاي شو چې د درويا زياتو جملو لرونكي وي كه څه هم په خپله د پښتو ژبې د جملو په جوړښت او ساختمان كې ډير كړكېچن او مغلق شكلونه نه ځايږي، ولې تركومې اندازې پورې چې ليدل كيږي په پښتو ژبه كې ددغه ډول غبرګو جملو جوړښتونه په لاندې توګه راوړو:

**الف**: په غبرګه جمله كې چې د يوې يا څو جملو په واسطه د بلې مربوطه جملې كيفيت، حالت روښانه كړى شي.

**ب**: چې د اصلي (عمده) جملې نه وروسته دوه... داسې تابع جملې راغلې وي چې او له جمله يې د مبتدا توضيح كوي او دوهمه يې د لومړي تابع جملې وضاحت كوي[1].

په غبرګو تابع جملو كې داسې مثالونه وينو چې دوه اصلي جملې يا ورسره دوه فرعي جملې (تابع) راغلى وي او يا خو يوه اصلي دوه تابع يا دوه اصلي يوه تابع او دغه جملې بيا په خپلو منځو كې د تابعيت يا د توازن (مساوي) رابطه هم لري.

ددې له پاره دغه لاندينۍ جملې راوړو:

1- شپه چې پخه شوه او ټول ويده شول ادم خان د درخوديدن له ملاوتړ له. دلته دوه تابع (فرعى) جملې چې عطفي رابطه سره لري مخكې او دريمه اصلي جمله وروسته راغلې ده.

2- كله چې دوي راغلل او كارونه يې سرته ورسول د ځانګې مشرله دوي څخه ډېر مننه وكړه.

3- كه كارونه مو خلاص كړل او هوا هم ښه وه د ګلونو مېلې ته به لاړ شو.

4- هغه افكار چې ګډوډو ليكل شي او يو له بله رابطه ونه لري د تاليف ارزښت نه لري او د ليكونكي د انشايي قوت ډېره نيمګړتيا څرګندوي.

---

[1] **پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر 2 وك كابل د** 1370 **لمريز كال چاپ.**

دوه لومړۍ تابع او دوه وروستۍ اصلي جملې دي چې بیا په خپلو خپلو منځنو کې عطفي رابطه هم لري.

5- هغه ځوك چې ډیر مقید روزل شوي وي او ډېر ویریدونکی وي خیال او فکریې لکه کورنی مرغه لوړ پروازنه شي کولای او په اثارو کې یې د عالي فکر او ازاد خیال نښې نښانې نشولیدلی.

په پنځم مثال کې لومړۍ دوه تابع جملې د عطف په مرسته یو ځای شوي چې دوهمه دلومړي حال ښیي او وریسې دوه یوستوې جملې دي چې د اصلي (عمده) جملې دنده لري داهم په خپلو منځو کې عطفی ارتباط لري او په مجموع کې تابع مرکبې (غبرګې) جملې ګڼلې شي.

5- په غبرګه تابع جمله کې دوه د تابع جملې د اصلي (عمده) جملې کیفیت حالت ځرګندوي لکه:

6- په (1345) ش کال کې د خوشحال ختك د لمانځنې او درناوي یوه درنه کالیزه جوړه شوې وه چې په هغې کې ډیرو پوهانو، لیکوالو، شاعرانو برخه اخیستې وه او غوره مقالې او مضامین یې لیکلې وو. په دغه مثال کې لومړۍ اصلی (عمده) او دوه نورې د لومړۍ جملې بیان او شرح ده.

7- بل مثال: مزدورې ماته وویل، چې نور ځواب نه شم ورای ځکه مونږ مزدور خلك یو او له کوره به مو وباسي نو بیا به کومې خوا ته ځو.

په دغه جمله کې د لومړیو جملو شرح علت او نتیجه په وروستیو جملو کې بیان شوې ده.

8- هغه دوه تابع جملې چې د اصلي جملې نه وروسته راغلې وي چې اوله یې د مبتدا توضیح کوي او دوهمه یې د لومړۍ تابع جملې وضاحت کوي. لکه: اصلي پوهه هغه ده چې په هغو لارو لاس ته راشي چې خلکو ته پرې فایده رسیدای شي.

په پښتو ژبه کې د غبرګو په تېره تابع جملو جوړښت، نه دومره لنډ او نه خو هومره مغلق او کړکېچن جوړښت لري، چې اصلي مطلب په کې تری تم شي.

یادونه:

## معترضه جملې:

دلته د معترضو جملو په باب ښایي دومره ځرګندونه وشي چې دا هغه ډول جملې دي چې په فعلي جملو کې د فاعل، مفعول او فعل ترمنځ راورل کیږي خو د اصلي جملې سره کومه نحوي رابطه نه ساتي. دغه ډول جملې د یوستوو جملو او کله هم د غبرګو جملو په منځ کې ورغورځیږي

که چېرې دغه جمله له دغه نحوي ساختمان څخه راوویستل شي د جملې اصلي مطلب ته کوم تاوان نه رسیږي.

معترضه جملې اکثرا د عایه وي یا د بلې جملې وضاحت کوي لکه:

دغو خلکو (خدای دې ورسره ښه وکړي) له تا سوسره پوره مرسته کړې ده. په دغه جمله کې (دغو خلکو) (مغیره حالت) مبتدا (مسند الیه) او (له تاسو سره مرسته کړې) خبر (مسند) د جملې اصلی (عمده) برخې دي.

او (خدای دې ورسره ښه وکړي) معترضه جمله بلله کیږي.

زمرك دې خدای په خوشحالیو پټ کړي له دوي سره یې ډېرې هلې ځلې وکړې.

په لوړه جمله کې هم (خدای دې په خوشحالیو پټ کړي) معترضه جمله ده. او (زمرك له دوي سره ډېرې هلې ځلې وکړې) اصلي جمله بلله کیږي.

## په پښتـو جملو کې د جملې د يوې برخې يـا اجزاو (ايليپسي **Ellipsis**) د حذف مسئله:

مونږ د پښتو ژبې په جملو کې داو ښود لـه او په ټاکلي او معينـه توګـه څرګنده شوه چې هره يوستوې او يا غبرګه جمله د مسند اليه، مسند يا (**فاعـل**، مفعـول، **فعـل**) درلـودونکي وي چې بيـا هره برخه دخپلو مربوطه توکونو (اجزاو) سره پـه ټاکلي او ثابت ترتيب سره راځي. ولـې دلتـه مونږ هغې موضوع ته پاملرنه را اړوو چې کله يوه جمله يا يو بشپړ مطلب داجزاو په لحاظ بشپړ نه وي.

خو د ابايد ووايو چې په متن (کانت کس..) کې د جملې د اجزاو يا د برخو حذف او نـه راوړل د جملې په معنا کې کوم بدلون نـه ښيي البتـه پـه دې شرط چې يـوه قرينـه او نښـه ولري. مونږ ددې مقصد له پاره د يوستو او غبرګو جملو ځيني مثالونه په لنډه توګه راوړو. که څه هم دا موضوع ډيره پراخه او زياته څيړنه غواړي.

الف: د (**فاعل** (مسند اليه) حذف:

**لومړی بېلګه**: زمرك پوهنتون ته راغی او ولاړ:

په دويمـه جملـه کې ولاړ پـه يـوازې توګـه راغلـی دی چې اوريـدونکی او لوسـتونکی دجملـې د لومړۍ برخې پـه معنـا پـوره پوهيـږي او فعلونـه د **عطف** پـه صـورت کې راوړل شـوي دي، نوپـه دې اساس د دويمې جملې **فاعل** هم څرګنديږي چې په خپله (زمرك) دی.

څنګه چې په لومړۍ جملې کې د **فاعل** د نوم (زمرك) يادونه شوې ده نو په دويمه جمله کې يې راوړل ضروري خبره نه ده.

### دويم مثال:

اوښکـې خوړونـه شـول بيـا سـيندونه شـول او بيـا ويـالې شـوې او وروسـته د **ګـل** پرشـاخ کې وچليدې.

په دغې جملې کې هم د يوه مسند اليه (**فاعل**) لـه پاره څو مسنده (**فعل**) او يـا د هر مسند لـه پاره مسند اليه هماغه قرينه يعنی د لومړۍ جملې **فاعل** سره ارتباط لري. که چېرې لومړۍ جمله نه وي نو بيا به خبره بل ډول وي.

## دریيم مثال:

هلك هم پوه دی او هم زیارکښ یا هره ژبه له بلې نه څه اخلي او څه ورکوي. په دغو جملو کې د (هلك) او (هره ژبه) تکرار په دويمه جمله کې لاژمه نه ګڼل کيږي.

څلورمه بېلګه: په هغو جملو کې چې فاعل يې شخصي ضميرونه وي نو د فاعل نه راوړل د معنا له پاره کوم ضرر نه پېښوي ځکه د فعلي خاتمې له مخې د شخص (فاعل) څرګندونه کيږي.

په کلي ورننوتم= زه په کلي ورننوتم.

د يوې ننداري په ننداره شوم = زه د يوې ننداري په ننداره شوم.

پنځمه بېلګه کې ګورو چې مسند اليه د اختصار او لنډيز په غرض حذف شوی دی[1] که په يوې پوښتنې کې مسند اليه (نوم) راغلی وي نو په ځواب کې يې بيا راوړلو ته ضرورت نه ليدل کېږي.

1. ملا نصرالدين چېرې و؟ 2- تاسي چېرته اوسيږئ؟

د لومړۍ جملې ځواب (په کور کې دی) او د دويمې جملې ځواب (په کابل کې اوسيږو) دلته مسند اليه نه راوړل کيږي نو اصل مطلب ته کوم زيان نه رسوي.

## شپږمه بېلګه:

کله د مسند اليه (نوم) څرګندول مناسب نه وي نو بيا نه راوړل کيږي.

او يوازې د ځای او قرينې له مخې ويونکی او اوريدونکی پوهېدلی شي لکه (هلته پټ ناست دی) په داسې صورت کې چې بل چاته يې د نوم ښودل نه غواړې.

اوومه بېلګه:

د خطر او سختۍ او دوخت د تنګۍ په وخت کې: هله سوځي! ګوره پر يوځي! په دې ځای کې مسند اليه حذفيږي او د ځای او حال قرينه ورباندې دلالت کوي.

## ب: د مفعول حذف:

په نحوه کې مفعول هم د فاعل د نائب په توګه د مسند اليه حيثيت لري او کله کله حذفېږي يعنی د نوم اخيستنه يې ضرر يا عيب او يا تکرار وي.

---

[1] پوهاند صديق ا ر تين، پ تو رامر 2 وك كابل 1370 لمريز كال.

1- دوه داني مې واخېستل يعنى (دوه کارتوسه).

2- د سوال په ځواب کې راوړل یې هم بې ضرورته برېښي يعنى که په سوال کې راوړل شي نو په ځواب کې يې راوړل نه ښايي.

سوال: تا ژمني کالي جوړ کړي دي؟

ځواب: هو جوړ کړي مې دي.

بل مثال: ملالۍ خپلې ملګرې ته ليك ليکلى دى؟ هو ليکلى دى.

ج: د **فعل حذف**: د فعل يا کومکي فعل نه راوړل (حذفيدل) هم د پښتو ژبې په خاصو نحوي او سبکي جملو کې وينو چې په لاندې کرښو کې يې بيانوو:

1- په پښتو ژبه کې که څه هم په نحوي چاپېريال کې د فعلي او اسمي جملې خبر د فعل بشپړ فعل او کومکی فعل په مرسته جوړېږي ولې په ايليپسی (حذف) موضوع کې دغه برخه نيمګړې کيږي. ددې لپاره لومړی د هغو جملو مثالونه چې د مسند اليه او مسند څخه وروسته د (اسناد) کومکي فعل حذفيدنه وي راوړو او وروسته بشپړ فعلي اشکال:

مونږ دغه ډول مثالونه د پښتو ژبې په اصطلاح ګانو، متلونو، ديالوګونو، خبرو اترو، سوال و ځواب او ځينو نورو جملو کې ليدلی شو: خپل عمل دلارې مل. کوزوړ له خپله لاسه خوړ. د بيزو د وستې د ځان تاوان. دروغجن هيرجن.. په دغو مثالونو کې خپل عمل، کوږوړ، دبيزو دوستي، دروغجن د جملې مسند اليه او نورې پاتې برخې يې مسند دي ولې اسناديې حذف شوي دي.

2- په هغو جملو کې چې غبرګ مطلب ولري يعنى ددوو جملو ساختماني شکل ولري هم کومکي فعل په دواړو برخو کې نه وي راغلی لکه (سردې ګل بيخ دې پياز).

(څوك خپه څوك خوشحاله) (زه په تمه ته بې غمه) (خبرې ډيرې سريې يو) په اوله جمله کې (دی) دويمه کې (وي) دريمه کې (يم يې) څلورمه کې (دی) حذف دي.

3- په جمله کې چې لومړۍ برخه پوره او دويمه يې د کومکی فعل ولېدلی وی.

نه خان يم نه زميندار ... ځان ښه دی که جهان...

خپله خوله هم کلاده هم بلا. . . هلك هم پوه دی هم زيار کښ.

ياوړ دی يازوړ. کتابونه ډېروو څه يې ښه... او څه يې نه...

4- په هغو غبرګو جملو کې چې فعل په دواړو کې مشترك وي د تکرار د مخنيوي په غرض:

1- چا ياران کتل چاماران.

2- یو موټر د پاسه راغی یو دښکته او دواړه سره وجنګیدل.
3- زه ستاسې نه خوښې څرګندوم او هغوی نه هم.
4- یو ځان نه ویني او بل جهان 5- کارغه یوه خواګرځي، بلبل په بله خوا.
6- د چا دیدار په کاردی او د چا دینار...
په دغو جملو کې لیدل کیږي، چې د غبرګو جملو په توګه استعمالیږي لومړۍ جملې د **فعل** او **فاعل** له مخې پوره دي مګر دویمې جملې یې د **فعل** (مسند) ټوله برخه او یا یوه برخه حذف شوې ده.
5- همدرانګه په ځینو شرطیه یا د پوښتنې په جملو کې هم حذف راځي لکه: چاي څښې که اوبه؟
6- مسند (**فعل**) د سوال او ځواب په جملو کې هم حذفیږي په دی معنا چې.. په سوال کې مسند راوړل شوي وي مګر په ځواب کې د لنډیز لپاره نه راوړل کیږي لکه:
س: ړوند له خدایه څه غواړي؟ ج: دوې سترګې.
س: افضل ختګ څوك دي؟ ج: د خوشحال ختك لمسی
7- په تعجبي جملو کې هم د جملې ځیني غړي نه راوړل کیږي لکه:
1- ربښتیا! 2- څه عجبه! 3- څنګه ناوخته! 4- افسوس!
5- سحرمې د ماما د پټې په سر پنځه زره روپۍ اخیستې دي! تعجب! ایله پنځه زره روپۍ!.
8- په وینا کې (**فعل**) د ځینو خاصو ځانګړتیاو او سبکي خصوصیاتو له امله هم یوه جمله پوره نه راوړل کیږي یعنی په هنري ادبیاتو کې په خاص سبك سره لیکوال د جملې د ځینو برخو بشپړول د لوستونکي ذهن ته پریږدي لکه:
1- مونږ څه هیبت څه ویره او څه د ټانګې او اسپې بد حال . . .
2- ماوي څه ګذاره000
3- دا مو دویمه غله ژرنده000 همدارنګه کله د تمسخر او خندا په غرض:
تاسو زمونږ تیار خواره . . .
د: کله په جمله کې قیدونه هم حذفیږي یعنی نه راوړل کیږي لکه:
په یوه باغ کې ځیني خس او خاشاك ټولوي او ځیني د ګلو دستې جوړ وي.

په دغې جملې کې د ځاي قيد (په يوه باغ کې) د دواړو جملو شامله برخه ده خوپه دويمې جملې کې يې حذف شوی دی خو د قرينې له مخې په مقصد پوهيدای شي. په همدې توګه مونږ زيات مثالونه ښودلی شو.

## په ژبه کې دوينا د ګرامري اجزاو د ماهيت بدلون
## (کونوېرژن Conversion)

په واقعيت کې کونويرژن اړونه، ګرځونه (له يوه حالت نه بل حالت ته تغيير، تصرف يا اړول، ګرځول، بدلول او معنا ته تغيير ورکولو مفهوم لري.[1] چې په دې توګه شرح کيږي:

الف: د يوې کلمې څخه د نوي لغتونو د جوړلولو طريقه هم ده په دې معنا چې په لغت جوړونه کې د اصلي کلمې مطلب د نورو اجزاو د ترکيب سره اوړي[2] د مثال په توګه.

(توروالی) په پښتو ژبه کې يوه (اشتقاقي کلمه ده، چې د (تور) صفت او (والي) ورستاړي څخه جوړه شوې ده. دلته ګورو چې صفت ددغې لاحقې سره دماهيت له مخې په نوم باندې اوښتی دی.

يا دا چې د يوه اسم څخه د فعلي ترکيب جوړول هم (اسمي) معنا په فعلي بآندې بدلوي. د ژبپوهنې اصطلاحي قاموس کې داسې هم راغلي دي چې يو اواز په بل اواز اوړي او يا خو (يو غږن اواز په بې غږه يا بې غږه په غږن اواز باندې بدل شي)[3] خو مونږ په دې برخه کې د اوازونو په کانويرژن باندې نه غږيږو يوازې په لنډه توګه د ځينو لفظي واحدونو لکه د (نوم، صفت، قيد، فعل) بدلون د ماهيت او معنا له مخې څېړو، ځکه دغه هم زمونږ د موضوع سره اړخ لګوي.

که څه هم دا موضوع ډېره ارزښتناکه او د غوروړ ده او په دې برخه کې څه کار هم نه دی شوی نو په دې توګه خورا زياته څېړنه هم په کارده.

## په پښتو ژبه کې دوينا د ګرامري اجزاو د ماهيت بدلون:

د ګرامري اجزاو د ماهيت بدلون دا معنا لري چې يوه کلمه د ګرامري اجزاو د يوې معنا پر ځاي بله معنا او ځانګړتيا ترلاسه کړي، چې دغه تغير او بدلون ته کونويژرن يا د الفاظو معنوي

---

(1) پ تو ولنه، ان ليسي پ تو قاموس، کابل، 1354، (156) مخ.

(2) و، س، اخمانوا، د ژبپوهنی اصطلاحي قاموس، د شوروي دايره المعارف مطبعه، مسکو 1966 (202) مخ.

(3) و. س. اخمانوا. د ژبپوهنی اصطلاحی قاموس د شوروي د ايره المعارف، مسکو، 1966 (202) مخ.

تغییر ویل کیږي. د الفاظو معنوي تغییر یوه نحوي او سیمانتیکي مسئله ده چې یوازې او یوازې په جمله کې ښه څرګندیږي.

په پښتو ژبه کې یو شمیر داسې کلمې او لغتونه شته چې د هغو معنا پوره روښانه نه وي د مثال په توګه د اسم، صفت او قید کلمې چې ددوي ترمنځ بېلوالی په ځینو ځایو کې ګران دي ولې په نحوي چاپیریال کې هغه د استعمال له مخې خپله معنا څرګندولی شي.

همدرانګه د یوه اسم او صفت ترمنځ بېلوالی هم د نحوي موقعیت لـه مخې سره بېلولی شو د نحوي دریځ له مخې وینو. چې یو صفت په اسمي معنا بدل شوي وي او یا برعکس.

هغه عملیه چې یو صفت، فعلی صفت..) په نوم (اسم) بدل او اسمي مطلب څرګند کړي د سوبستانتیوا ځیه (اسمي کیدنه) په نامه یادیږي او یا برعکس که نومونه. . . د صفت په معنا راغلی او یا د صفت دنده ترسره کړي دغه عملیه بیا (ادیکتیو اځپه) په صفت اوښتي وي یعنی (صفتی کیدل).د مثال په توګه:

په جمله کې د الفاظو د استعمال له مخې مونږ ویلی شو چې دغه کلمې څه حیثیت او دریځ لري. اسم دی که صفت که قید او یا څه نور اشکال دي.

البته د لفظ او شکل لـه مخه څه نـه شوویلی ځکه په پښتو ژبه کې د اسم او صفت ترمنځ د شکل له مخه دګرامري کتـه ګوریـو پـه لحاظ کـوم خاص توپیرنـه وینوولې د معنا پـه لحاظ تـوپیر ښکاره کیږي. د څرګندونې له پاره یو څو نومونه او صفتونه سره پرتله کوو او ګورو چې د شکل له مخې څه ګرامري بېلوالی لري او که نه.

اول- نوم: الف: په پښتو ژبه کې یو شمیر نارینه نومونـه دي چې د (ay -ی) پـه غبرګګ غـږ ختم وی. د ګرامري کتـه ګوری له مخې مفرد عدد ، نارینه جنس او اصلی حالت لري لکـه. لرګی، سړی، ستوری، غړی، میږی، وری.

ب: هغه نومونه چې پـه کانسونینټ ختم وي دا هـم مفرد نارینـه اصلي حالت لـري لکـه: کـور، اور، لور او داسې نور.

دویم: الف: په پښتو ژبه کې داسې صفتونه هم لرو چې پـه نرمـه (ی) (ay) پـه غبرګګ غـږ مختـوم وي او د ګرامري کتـه ګوری لـه مخې هم مفـرد عـدد ، نارینـه جنس، اصـلي حالت لـري لکـه: نـوی، پردی، وړی، ښکلی، لوی، سوی.

ب: هغه صفتونه چې په اصلي غږونو (کانسونینټ) ختم وي.

او هم مفرد، عدد، نارينه جنس، اصلي حالت لري لکه: تور، مور، سپين، سپور، کوز، روند.
د نومورو مثالونو له مخې ګورو چې د صرفي اوليك دود (ارفوګرافي) له مخه څه توپيرنه لري او په دغو کلمو کې جنس عدد او داسې نور ګرامري او لفظي نښې هم نشته چې يو تربله يې بېلونه وکړاي شي.
په دې توګه دغه لاندې مثال په مقايسوي ډول ګورو:
(ونه، لښته، مفرد مونث نومونه دي او (پخه، سپينه) هم مفرد مونث صفتونه چې جمع يې (ونې لښتې) (پخې- سپينې) دي.
ج: په پښتو ژبه کې يو شمير ځيني سو فکسونه هم شته دي چې هم د اسم د جوړولو او هم د صفت د جوړولو لپاره په کارېږي لکه: څوکيدار، زميندار (اسم). ميوه دار، ګلدار (صفت) پنډي، جوالي (اسم) وطني، دولتي (صفت) په دې توګه د بنوال او کامه وال ترمنځ هم کومه ښکاره د بېلوالي نښه نه وينو. په دې حساب ددغو پورتنيو ګرامري شکلونو او سوفيکسونونه د اسم او صفت بېلوالی نه څرګندېږي ځکه دغه ګرامري او اشتقاقي نښې نښانې په نوم او صفت کې مشترکې دي. يوازې د مفهوم او موقعيت له مخه سره بېلېدای شي.
يو بل مثال داسې راوړو:
1- (يو ليکونکی سړی) (2) (دکتاب ليکونکي وويل) د ساختمان او جوړښت له مخې لومړی مثال عددي توصيفي ترکيب دی او دويمه جمله، چې د کتاب ليکونکی اضافي ترکيب دی او د جملې د مسند اليه په توګه راغلی دی. دلته ګورو په لومړي مثال کې (ليکونکی) صفت دی چې د نوم (سړی) سره اړه لري او ګرامري مطابقت هم په کې موجود دی. تر موصوفه د صفت وړاندې والی هم په کې ليدل کيږي.
او په دويم مثال کې ليکونکی په خپله اسم دی، چې د فعلي جملې د مبتدا (فاعل) او اسم دنده ترسره کوي او د (وويل) فعل سره تعلق لري.
په جملو کې د ګرامري اجزاو د ترتيب په هکله بايد ووايو: په پښتو ژبه کې د کلمو موقعيت په جملو کې يو څه ثابت شوی شکل لري يعنی اول اسمي غونډ (مسند اليه، فاعل) او په پای کې فعل (مسند) راغلی وي. او صفت د اسم نه د مخه او مفعول، ظرف، قيد هم د فعل څخه د مخه راځي مګر دغه ترتيب کله هم اوړي چې دجملو د اجزاو د ترتيب په برخه کې مو ورته اشاره کړې ده.

# په اسمی توګه د کلام (ځینو ګرامري) اجزاو او ښتنه

## 1- صفت د اسم په توګه : (Substantivization) :

زمونږ سپین ږیري د قدر وړ دي یا زمونږ مشران ښه خلك تېر شوي دي. مشران سره جرګه شوي دي.

په نوموړو جملو کې سپین ږیري یا مشران صفتونه دي چې د نوم په توګه راغلي دي. محترمو مشرانو! مشران په ندایي حالت کې د اسم په توګه دریځ لري یعنی په خپله د اسم وظیفه یې ترسره کړې ده. چې د نورو اسمي ډلو په څېر د صفت، قید او نورو توابعو قبلوونکي هم دي. دلته ګورو چې د (مشران) معنوي دریځ هم هغسی دی لکه چې (دوستان) یې لري.

د (محترمو دوستانو!) په جمله کې وینو (محترم) د دوستانو سره توصیفي ترکیب ګڼل کیږي نو د (مشران) سره هم محترم دغه ډول ترکیب دی.

همدارنګه (لویان مهربان دي) (کشران بې تجربې وي). هم په دغه ډول مثالونوکې راځي. په دې توګه سپین ږیری (د زوړ په معنا) او سپین سترګی صفتونه دي چې په جمله کې د نوم (فاعل) په توګه راځي لکه: سپین ږیري راغی یاسپین سترګې ولاړه.

دویم: فاعلي صفات هم زیات اسمی رنګ غوره کوي. اولاداسې مثالونه په پښتو کې لرو چې دغه فاعلي صفات کورټ اسم ته اوښتي دي. او خپله اصلي صفتي معنا یې له لاسه ورکړې ده. لکه: ښوونکی، چلوونکی، ګنډونکی چې د (ښوول، چلول، کنډل) د فعلي ریښې څخه جوړ شوي دي. همدارنګه ځیني داسې مثالونه هم وړاندې کوو چې د فاعلي صفت معنا په اسم اوښتي وي بیلګه:

ځیني معلومات ګرانو اوریدنکوته وړاندې کیږي.

دلته (اوریدونکوته) په دویم حالت کې د اوریدونکي دجمع شکل دی چې د (ته) پسینې د عمل په وجه یې (و) وروستاړی منلی دی او د جمع اسم ارتباطي (مفعول له) حالت په توګه راغلی دی. دغه شان د (ښه اوریدونکی، ښه لیکونکی) په ترکیب کې داسمي مرکز په توګه وظیفه لري.

دریېم: مفعولي صفت د اسم په توګه:

1- مار خوړلی له رسۍ همه بېریږي 2- اوبو اخستی خلوته هم لاس اچوي.

3- خدای بخښلي څه ښه کارونه یې سرته رسولي دي.

څلورم : مصدر داسم په توګه:

1- کښتۍ را وځغلیدې او د مالونو کوزیدل او ختل شروع شول.

2- ددې باغ په ښایسته کولو کې د طبیعت نه علاوه د روزنې لاسونه هم خپل پوره کمال ښودلی دی

## اسم د (صفت په توګه (اديکتیوا ځیه):

دلته یو اسم د صفت په توګه معنا ښندي لکه:

1- دوي په تیاره کوټه کې ناست دي (2) دلته رڼا ورځ نه ده.

په دغو مثالونو کې (رڼا اوتیاره) په اصل کې نومونه دي ولې په دغو جملو کې د صفت په توګه دنده لري.

فعلي صفت د مطلق صفت په توګه راغلي وي:

1- مسافر ورونکې کښتۍ د سمندر په غاړه ودریده. 2- خبررسوونکي اژانس وویل

3- خبر لوڅ خلك بل کارنه لري. 4- له پروت زمري نه ګرځنده کېدړ ښه دی

په دغه مثالونو کې کښتۍ، اژانس، خلك، کیدړ نومونه دي چې فعلي نومونه، صفتونه د مطلق صفت په توګه ورسره کار ورکوي.

همدارنګه مفعولي صفات هم په دې برخه کې راتلاي شي لکه:

1- وهل شوی کاروان راورسید. غم ځپلی زړه یې وچاود.

## صفت د قید په توګه:

څنګه چې په ځینو ځایونو کې د صفت او اسم پېژندل ګران کار دی په همدغه توګه دصفت او قیدونو بېلو نه هم څه قدرې فکر غواړي مګر دغه توپیر په نحوي چاپیریال کې ډیره اسانه خبره ده، ځکه په پښتو ژبه کې صفات دقید په توګه دنده تر سره کوي او هم د تاکید په مفهوم سره راوړل کیږي. څنګه چې وینو یو صفت په یوې جملې کې صفتي معنا لري مګر هماغه نوموړی صفت په بلې جملې کې دقید او تاکید وظیفه لري لکه دغه لاندې څو مثالونه ګورو.

مالیار ښه ګلان وکرل. بزګرانو ښه غنم وریبل. دلته (ښه) د یو صفت په توګه معنا ورکوي مګر په دې جملو کې: بزګرانو ځمکه ښه او به کړه. خوشحال خان ښه تورځن و.

په دغو جملو کې (ښه) د قید دنده لري. ایا دوي ډیر ښه خلك دي. 2- دوي ډیر ښه کار کوي.

په اوله جمله کې (ډیر ښه) قید او تاکید دی او د اسم (خلك) سره توصیفی ترکیب په توګه داسمي جملې خبر جوړ وي.

په دویمه جمله کې (ډېر ښه) تاکیدي قید دی. او د فعلي جملې د خبر دمتعلقاتو څخه دی. یا دا بل مثال ته هم پاملرنه کوو:

1- ترنده غوا راغله 2- ترنده ترنده شاوخوا ګوري. 3- غواو تریده. په اوله جمله کې د صفت او په دویمه جمله کې قیدي معنا ورکوي. مګر په دریمه جمله کې داسمي ماهیت پر ځای فعلي ماهیت لري.

دا وو په پښتو ژبه کې دوینا د ګرامري اجزاو د ماهیت بدلون (کونویرژن) ته لنډه غونډې کتنه.

## نتیجه او وروستۍ خبري

په نورو ژبو کې د نحوې په برخه کې البته کافي کارشوی دی ولې په پښتو کې تر اوسه پورې د پښتو ژبې او ادب د اسمان ځلانده ستوري لوی استاد علامه پوهاند رشتین د ګرامر څخه پرته بل کوم بشپړ علمي او اکاډیمیك کارنه دی ترسره شوی او زه هم په دې توګه د ډیرو ستونزو سره مخامخ شوی یم لیکن د څو کالو په ترڅ کې مې ددې اثر د لیکلو دپاره د مخه مواد راغونډ کړل ترڅومې دغه پلان ترسره کړ. البته زما دغه کار به هم په سلوکې سل بشپړنه وي ځکه چې د یوې ژبې ټولې بشپړې نحوي ځانګړتیاوې ددې اثر د حوصلې څخه لوړې دی.

څنګه چې د نحوې غرض او مطلب د یوې ژبې دجملو قسمونو او ډولونو او د جملو د جوړښت، ترکیب او په جمله کې د کلماتو ترتیب او یو تربله ددوي ترمنځ ارتباط او پیوستون مطابقت او نورو حالاتو څېړل دي، چې ددې څېړنې د پېژندنې د هدف له مخې چې لوستونکي او زده کوونکي د پښتو ژبې د ښوروانو جملو او د فصیحو او بلیغو عبارتونو په واسطه خپل مطلب او مقصد په ښه شان څرګند کړي. عبارت او جملې د کږکیچ او عیب نه خالی وي. نومونړ د کار د اسانتیا دپاره لومړی د صرف او نحوې توپیر په دویم څپرکې کې روښانه کړی دی او بیامو د پښتو ژبې د نحوي واحدونو (ترکیب او جمله) په هکله هم څرګندونې کړي دي چې پخپل ځای په مفصل ډول راغلي دي.

په دې توګه د پښتو ژبې هغه ټول ترکیبونه چې نحوي ساختمانونه جوړ وي یعنی (اسمي او فعلي) د جوړښت او ساختمان او معنا له مخې په بشپړه توګه د زیاتو مثالونو سره روښانه کړې دي، چې دغه موضوع هم درسالې په یو بېل فصل کې راغلې ده.

مونږ ته د پښتو ژبې د نحوي ترکیبونو د څېړنې څخه داسې جوته شوه چې ترکیبونه د ګرامري مطابقتونو او ترتیب په اساس ترکیب او ارتباط ساتي چې دغه رابطه او اړیکي په دوو صورتو سره وي:

1- ربطي او عطفي 2- مطابقت.

همدارنګه د غونډ (ترکیب) په جوړښت کې یو عنصر د ترکیب اساسي غړي په توګه چې زړی یا هسته ورته ویلای شو ځای لري او د نورو غړو سره ټاکلي اساسي عمده رول لري. ددې له پاره دغه لاندې مثالونه څېړو:

1- نامتو شاعر: یو ترکیب (غونډ) دی چې (شاعر) ددغه غونډ د اصلی جزاو د اساسي (زړي) په توګه پېژندل شوی دی. که چېرې دغه غونډ لاپسې اوږد (لوی) شي بیا هم د شاعر نوم ثابت او د هستې په توګه پاتې کیږي. لکه:

پیاوړی نامتو شاعر او یا زمونږ ننګیالی، توریالی، پیاوړی، نامتو شاعر په غونډ کې (شاعر) د ترکیب اساس دی.

همدارنګه که دغه ترکیب په جمله کې راوړو:

زمونږ پیاوړی نامتو شاعر خوشحال ختهك دی. یا (ژوندی دی) که د لوړو ترکیبونو څخه د شاعر نوم له منځه وباسو پاتې برخه خپله معنا له لاسه ورکوي او ددغو پاتو برخو ترمنځ ارتباط پرې کیږي. دلته لیدل کیږي چې (شاعر) د غونډ او د (جملې) مرکزي هسته جوړ وي. د همدغه مرکزي (زړي) (شاعر) له مخې د ترکیب (غونډ) د اجزا و ترمنځ رابطې او مطابقت موضوع او د جملې د اجزاو (برخو) ترمنځ رابطه او مطابقت په ښه توګه څرګندیداي شي.

د پښتو ژبې د جملو د جوړښت په باب باید ووایو چې:

1- په عمومي توګه لومړی مسند الیه (مبتدا) او ورپسې مسند (خبر) راځي.

2- د پښتو ژبې د جملې اجزاوې: فاعل او فعل ترمنځ د فعل متعلقات وړاندې وروسته کیداي شي چې دغه موضوع د جملو په ترتیب کې په پوره توګه ذکر شوې ده.

بله خبره دا ده چې په پښتو ژبه کې د مسند او مسند اليه سمون او مطابقت په بشپړه توګه روښانه شوی دی. مونږ پخپله څېړنه کې په پښتو ژبه کې جمله د شکل او جوړښت په لحاظ په دووډلو ويشلې ده.

1- يو ستوي (ساده) جملې 2- غبرګې (مرکبې) جملې.

چې بيا دغه هره يوه په لنډو او اوږدو باندې ببلې کړای شوي دي.

د پښتو ژبې د يوستو جملو په برخه کې کومه خاصه نظريه نه ليدل کيږي ولې د مرکبو (غبرګو) جملو په باب ځينې ببلې نظريې شته دي. د مثال په توګه دلاريمر په ليکنه کې چې يوه پېړۍ د مخه د پښتو ژبې دجملو په باب داسې نظريه درلوده چې (ګوندې پښتو ژبه د غبرګو او اوږدو جملو استعداد نلري بلکې داسې جملې پکې شته چې په هغې کې ډير ساده او ابتدايي جوړښتونه ليدل کيږي).

ولې دا نظريه په عملي ډګر کې د قبلولو وړ ځکه نه ده، چې هره ژبه ځانته د جملو په جوړښت او ترتيب کې يوه خاصه ځانګړتيا لري او هغه څوك پرې ښه پوهيداي شي چې هم په ژبه کې پوهه او پوره لاس ولري. مونږ د پښتو ژبې د ادبي او محاوروي موادو په استنادويلاي شو، چې پښتو ژبه برسېره د يوستوو (ساده) جملو په درلودلو سره د غبرګو (مرکبو) جملو ساختمانونه هم لري چې يو زيات مثالونه او تحليلونه يې د مرکبو جملو په برخه کې راغلي دي ولې دا خبره بايد له ياده ونه باسو چې پښتو ژبه ډير کړکېچن او مغلق جوړښتونه نشي زغملای بلکې د مطلب او مقصد افاده د فصيح او بليغو عباراتو په واسطه څرګنديږي، کومې کړکېچنې او مغلقې جملې چې په پښتو ژبه کې اوس استعماليږي هغه د نورو ژبو د اغيزې او يا د نامناسبو ترجمولې لارې جوړې شوي دي.

لنډه دا چې پښتو ژبه د نحوي جوړښتونو په لحاظ ډيره شتمنه ده.

په پاي کې ددې خبرې يادونه کوو، چې د پښتو ژبې د ګرامر د علمي اساس په ټينګښت کې د پښتو ژبې بېلا بېلې لهجې او ادبي ژبه د متقابلو اړيکو له مخې په پوره توګه مرسته کولای شي!!!

# اخيستنځي

1. الفت. ګل پاچا، املا او انشاء پښتو ټولنه، کابل، 1338لمریز کال
2. الفت: ګل پاچا، لغوي څېړنه، عمومي، مطبعه، کابل، 1321لمریز کال
3. الهام پوهاند محمد رحیم، روش جدید در تحقیق دستور زبان دري، پوهنتون، کابل، 1349هـ ش.
4. الهام پوهاند محمد رحیم، تیوري هاي نحو در زبان دري، د ادبیاتو پوهنځي، ګستتنر 1358ع
5. اسلانوف. م. س، پښتو روسی قاموس، د شوروي دایره المعارف، مسکو 1966ع
6. اخمانوا. و. س، د ژبپوهنې اصطلاحي قاموس، شوروي دایره المعارف، مسکو 1966ع
7. ایازي، محمداعظم، قواعد پښتو، کابل، 1318 هـ ش
8. اطلاعات او کلتور وزارت، پښتو چاپي اثار، کابل، 1357لمریز کال
9. بېنوا عبدالروف، اوسني لیکوال، لومړی ټوک، کابل، 1340لمریز کال
10. بینوا، عبدالروف، ادبي فنون. پښتو ټولنه، کابل 1326لمریز کال
11. برتلس. ي. د پښتو ژبې کندهاري لهجه، لیننګراد 1935ع
12. برتلس. ي. د پښتو ژبې جوړښت، لیننګراد، 1935ع
13. بیټنی، منتظر، پنځه حرفونه دیارلس اوازونه، پېښور، 1974ع
14. پښتو ټولنه، انګلیسي پښتو قاموس، کابل، 1975ع
15. پښتو ټولنه، توریالی پښتون، کابل 1950ع
16. پښتو ټولنه، ننګیالی پښتون، کابل، 1345ع
17. پښتو ټولنه، پښتو څېړنې، کابل، 1354لمریز کال
18. پنزل، هربرت، پښتو ګرامر (د پوهاند الهام ترجمه) کابل پوهنتون (1340 لمریز)
19. افغان پور، امین (موسکا) د لیکوالو اتحادیه. کابل 1362لمریز کال
20. خټک، خوشحال خان، کلیات خوشحال خان، پېښور. 1960 ع کال
21. خټک، اجمل، کچکول، پېښور 1944ع کال
22. خیال، عظیم شاه، صرف ونحو پښتو، پېښور، 1944ع کال
23. خانلري، پرویز، دستور زبان دری، ایران، 1352 ل کال

24. دوست، دوست محمد ، د افغانستان ژبې او توکمونه، پښتو ټولنه. کابل. 1354ل کال
25. دوریانکوف، ن. ا. پښتو ژبه، د شرقي ادبیاتو مطبعه، مسکو، 1960ع کال
26. ډار مستتر. تاریخ تلفظ و صرف پښتو، جلد اول و دوم، کابل چاپ
27. رحیم الله، قاضي، گنجینه افغانی، پېښور، 1938ع کال
28. رښیتن، صدیق الله، اشتقاقونه او ترکیبونه، پښتو ټولنه، کابل، 1326 لمریز کال
29. رښتین، پوهاند صدیق الله، پښتو ګرامر اول جز، پښتو ټولنه، کابل 1327لمریز کال
30. رښتین، پوهاند صدیق الله، پښتو ګرامر دوم ټوك، کابل، 1370 لمریز کال
31. رښتین پوهاند صدیق الله، پښتو مصدرونه، پښتو ټولنه، کابل، 1344 هـ. ل کال
32. رښتین، پوهاند صدیق الله، ژب ښودنه، پښتو ټولنه، کابل 1343-1343 لمریز کال.
33. رښتین پوهاند صدیق الله، د هند سفر، پښتو ټولنه، کابل، 1334 ل کال
34. زاحیلی، سید راحت، د پښتو قاعدې، قصه خوانی بازار پیښور، 1954 ع کال
35. رشتین ډاکتر زرغونه، د لرې او برې پښتونخوا په ادبي پښتو ژبه کې د لهجې خصوصیات، مسکو 1975ع کال (د ډاکترۍ تیزس).
36. زیور. ډاکتر زیور الدین، د پښتو ادبیاتو تاریخ اوسنۍ دوره، کابل پوهنتون 1360لمریز کال
37. سیمیونوف. یورس. د عمومی ژبپوهني اساسات. مسکو، 1975ع کال
38. شاکر نور احمد ، ژبنۍ څېړنې، د ادبیاتو پوهنځی، کابل 1350لمریز کال
39. عطا الله. د پښتنو تاریخ، لومړی ټوك، حربی پوهنتون مطبعه، کابل 1359لمریز کال.
40. عوریا خیل، کوثر، حسین بخش، د هندو اروپایي او سامي ژبو ویشنه، پېښور، 1359ع کال
41. عوریا خیل، کوثر، حسین بخش، افغان یو ریشایي او سامی ژبو ویشنه، پېښور، 1961 ع کال
42. کاکړ، پیر محمد. معرفه الافغاني، کابل، 1356ل کال
43. کالینینا. ز. م، د ادبي پښتو ژبې لغت پوهنه، د علومو مطبعه، مسکو، 1972ع کال
44. کود و خوف . و. ي. عمومي ژبپوهنه، لوړ ښوونځي، مسکو 1974ع کال

45. ګلووانـوا. ل. ز.. د خـارجي محـصلينو لـه پـاره د ژبپـوهنې درسـي کتـاب، د مـسکو پوهنتون مطبعه (1973)ع کال
46. ګرونبېرګ، پښتو ګرامر، 1987 ع کال.
47. ګلاوين. ب. ن. د ژبپوهنې اساسات، مسکو 1973ع کال
48. لودين. دولت محمد . لغت پوهنه، پښتو ټولنه. کابل. 1355 لمريز کال
49. ليبيديف. ك. ا0، روسي پښتو قاموس، شوروي دايره المعارف، مسکو. 1973
50. ليبيديف. ك. ا. پښتو ژبې درسي ګرامر، مسکو. 1970ع کال
51. ليکانت. ب. ا. په معاصره روسي ژبه کې ساده جملې. مسکو. 1974ع کال
52. د شوروي اتحاد د علومو اکاډيمي. د روسي ژبې انستيتوت. دادبي روسي ژبې ګرامـر. د علومو مطبعه، مسکو . 1970ع کال
53. مومند ، محمد ګل، د پښتو ژبې لياره، بلخ، 1317 لمريز کال
54. ماسلوف. يو. س. د ژبپوهنې مقدمه، (اساسات) لـوړ ښـوونځي مطبعـه مـسکو 1975ع کال
55. نوري، محمد ګل، د پښتـو اصـطلاحات او محـاورې، پښتـو ټولنـه، کابـل 1320 لمريـز کال
56. هير، سيد احسان الله، رنځور، پښتو ټولنه، کابل،1346 لمريز کال.